# کندهار

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه

د ۱۳۹٤ش کال دریمه ګڼه
(اسد - سنبله)



د کندهار مجلې په دې ګڼه کې:

خېلونه

د کابل پېغله

وختونه او یادونه

اسطوره او ادبیات

د استاد عطایي یاد

د کاندید اکاډمیسین محمدابراهیم عطایي پنځه اتیایمه کلیزه ولمانځل سوه

اجمل ښکلی/ کابل

# اساسي پوښتني

زموږ پښتو ژبه او ادب داسي نه دي، چي ګني موږ پرې وشرمېږو. زموږ مشرانو او کشرانو په ګډه ډېر کار کړی دئ او روان دی، خو ډېري بنسټي پوښتني لا پاته دي، چي زموږ ډېرو ثقیلو څېړنو هم نه دي حل کړي او که فکر پرې و نه شي، همداسي به پاته وي. د ادبي تیوری یوه موخه دا ده، چي لوستونکو ته ادب تعریف کړي او د ادب په ارزښت ئې پوه کړي.

حمید که په هر کال پیدا شوی؛ خو لوستونکي سره لومړی پوښتنه دا ده، چي حمید ولي ولولم، ادبیات ما ته څه ګټه کوي؟

کله موږ د ډېرو پېچلو علمي او څېړنیزو لیکنو او کتابونو په هوس او شهرت کي د ادب اساسي غوښتني او پوښتني له پامه وغورځوو.

له دي نه انکار نه دئ په کار چي څېړني د ادب د بقا له پاره په کار دي؛ خو کله کله څېړنیز کارونه د ادب پر څمکه درزونه پرېږدي. دا درزونه که ډک نه شي او بېلابېل ادبي کارونه سره کوشیر نه شي، لوستونکی د ادب پر ماهیت شکمن کېږي.

دا اوس موږ ډېر خلک وینو، چي شاعري د بیکارو خلکو کار بولي، چي ټولنه لټه او بېکاره کوي. دا خلک نالوستي هم نه دي او داسې هم نه ده، چي ګني پر شاعری به ئې فکر نه وي کړی؛ خو دا د ادبپوهانو لټي ښیي، چي د شاعری ارزښت ئې خلکو ته نه دئ ښودلی. یواځي شاعري نه، نثري ادب هم له همداسي چېلنجونو سره مخ دئ.

دا به هم منو، چي د ادبي اثارو د نه لوست لوی لامل نالوستي ده؛ خو کوم کسان چي لوستي دي، په هغوی کي هم یواځي د ادبیاتو فارغان ولي ادب له زړه نه نه لولي؟ دا هغه پوښتنه ده، چي ادبپوهان به ورته ځواب وایي.

# کندهار







علمي، تاريخي، ادبي او ټولنيزه مجله

د امتياز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ رياست

**دريمه دوره**

**د ۱۳۹۴ش کال دريمه ګڼه (زمرى - سلواغه)**

**پرله پسې ۷۰ يمه ګڼه**


**څو ضروري يادونې**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زيانمنې ليکنې نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکنې ليکنې معيار سره سم د ليکنو په اصلاح کې د لاسوهنې حق لري.
- را استول سوي ليکنې بېرته نه ورکول کېږي.
- هره ليکنه د ليکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هيواد او دباندې کې د مجلې بيې**

| |
|---|
| هيواد: ۲۰ - افغانۍ |
| پاکستان: ۵۰ - کلداري |

**کلنۍ ګډون**

| |
|---|
| هيواد: ۱۲۰ - افغانۍ |
| پاکستان: ۳۰۰ - کلداري |
| نور هيوادونه: ۸۰ - امريکايي ډالره |


مؤسس

**محمدولي زلمى**

سرپرست چلوونکی

**مطيع الله روهيال**

کتنپلاوی

**ډاکټر عبدالرازق پالوال**

**څېړندوی شېرشاه رشاد**

**حـــيات الله رفيقي**

**عبدالـــکريم طالب**

**فضل محمد پنهان**

**مطيع الله روهيال**

کمپيوټر چاري

**عثمان عاصي**



پته

علامه حبيبي واټ

د اطلاعاتو او فرهنګ رياست

د کندهار مجلې دفتر

ټيليفون: ۳۰۰۱۴۴۰

# فهرست

## څېړنه



## شعرونه



## ترجمه



## خاطرې

# د استاد عطايي ياد

سږکال (۱۳۹٤ش) د ارواښاد کانديد اکاډميسين استاد محمدابراهيم عطايي د زوکړې پنځه اتيا کاله پوره سول. استاد عطايي د "اوسني ليکوال" په حواله په ۱۳۰۹ش کال زوکړی وو، چې پنځه اتيايمه کليزه ئې د سرحدونو او قبايلو چارو وزارت له خوا د يو ورځني سيمينار په ترڅ کي ولمانځل سوه.

د دغه يو ورځني سيمينار ځيني مقالې د کندهار مجلې په دې ګڼه کي لوستلای سی. دغه مقالې د استاد عطايي د ژوندانه پر بېلابېلو اړخونو لږ و ډېره رڼا اچولای سي، خو کوم حق چې استاد عطايي ئې پر اوسنيو افغانانو لري، هغه تر دغسي يو ورځني سيمينار ډېر زيات دئ. د استاد عطايي د حق اداينې له پاره به تر ټولو ښه خبره دا وي چې د هغه ارواښاد ناچاپ کتابونه خپاره سي، ځکه هر ليکوال د خپلو آثارو په رڼا کي پېژندل کېدای سي، بله خبره دا، که چيري د هغه مرحوم د ځينو پخوانيو چاپ سوو آثارو له پاره د دوباره چاپ زمينه مساعده سي، دا به د اوسنيو پوهانو او نوو محققينو له پاره ښه فرصت وي، چې استاد عطايي د خپلو آثارو په هينداره کي ووينې.

استاد عطايي د خپل وخت له ځيرکو پوهانو او عالمانو څخه وو، د ژوري پوهې تر څنګ د لويې حوصلې څښتن وو، د پوهې ساحه ئې ځو اړخيزه وه، خو د پښتنې فوکلور په خاص ډول د پښتني نکلونو په باب د هغوی تحقيقات او پلټنې نه يوازي مؤثقي بلکي ډېري نوي او کاغذپېچه وې. (ملي هينداره د اجتماعي څېړنو په نظر کي) او (د پښتو پر شفاهي داستان يوه تحليلي څېړنه) دوه هغه آثار دي چې د فوکلور د برخي په ځانګړې توګه د نکلونو او داستانونو په برخه کي د استاد عطايي د مبتکر مغز محصول دي، په يقين سره ويلای سم، چې تر دوی مخکي به په دغه کميت او کيفيت تحقيقات په دې برخه کي نه وي سوي، که سوي وي حتماً به په دغه تول نه وي پوره.

په هر صورت د استاد عطايي لاره د علم او فرهنګ لاره وه، ځوانو محققينو او څېړونکو ته بويه چې د استاد عطايي د لاري پيروي وکړي او د خپل فرهنګ او کلتور سره د ميني او علاقې درس له استاد عطايي څخه زده کړي.

پر ګور ئې رڼا



ډاکټر عبدالرازق پالوال PH. D.

# خېلونه

ښاغلی محمدابراهیم عطائي داسي شخص ؤ لکه یوه ځنګلي ونه. د دء او همزولانو په زمانه کښي لکه استاد محمدانور نومیالی، نظرمحمد اڅک او ځیني نور د مکتب له رسمي زدکړو څخه د چاپېریال یا ټولني شرایطو او ذهنیت محروم ساتلي ول. نو دوی د بیابان د ونو غوندي مثال لارء، نه د باغي درختو غوندي چي باغوان ئې روزنه او پالنه کوي. سره له دغه محرومیته دوی خپل طبیعي استعداد تر ډېرو هغو کسانو چي د مکتب زدکړي ئې آن تر پوهنتون پوري کړي وې لا ئې هم ددوی پل نه ووهلای سوای.

نو یو خو ټولنیز ذهنیت مکتب ضد ؤ او بل دا چي کتابونه او کتابتون نه ؤ، دغه د کتابونو نه پیدا کېدنه د دې عامل ګرځېدلې ده چي له ما څخه نورو څلور واره کتابونه غلا کړي دي دا چي دوی به ئې په محتویاتو سم پوهېدل، که لا نه، دا خو هغه کتابونه ول چي ما یا دلې غونډ کړي ول او یا مي لا د دې واري له امریکا او جرمني څخه راوړي ول. د دغسي غلو له خوا څخه و ما ته لویه تباهي هغه وخت راپېښه سوه چي زما خپلي لیکني ئې راڅخه غلا کړي دي، دغه لیکلي کتابونه دي.

نو استاد نومیالي او ښاغلی عطایي په دغسي یوه زمانه کښي په علمي آثارو پسي خولې لګولي دي. که به و دوی ته هر راز کتاب په لاس ورغلئ ؤ، هغه ئې لوست. دغه که به د تعویذاتو کتاب ؤ یا به د فزیک کتاب ؤ. خو

دوی د کتاب لوستلو تنده لرله، او په ماتوله.

په دغه د کتاب د نستوالي په زمانه کښې، ځینې مارکسیستي او لینیني کتابونه د یوء او بل په لاسونو کښې پیدا سول. نو خود دوی هم ولوستل. دغه لکه معنوي کتابونه چې د خلکو په اذهانو کښې ریښې ځغلولې دي، په مقابل کښې ئې دغو مادي کتابونو هم د دوی په اذهانو کښې ریښې وځغلولې. د دغو اثرات د دوی په لیکنو کښې لیدل کېدلای سي.

ښاغلي عطائي کښلي دي: "د ویني په اړیکي سره خپلوان خېلونه د مورواکۍ په زمانه پوري اړه لري"(۷:۱۳۶۰).

دغه د پخوانیانو غلط فهمي ده. د مور واکۍ زمانه یا مرحله هیڅکله نه وه. څه چې وه هغه مور نسبي وه. خو پخوانیانو بشر پوهانو دغه Matriarchical بللې ده، چې په پارسي ادبیاتو کښې په مادر شاهي سره ترجمه سوې ده.

تر دغه دمخه لا ښاغلئ عطائي په نور وضاحت سره داسي یادونه یا لیکنه لري: "د کار طبیعي وېش، او د کار لومړی ټولیز وېش، او د کار دوهم ټولنیز وېش تر هغه وخته پوري چې اضافي محصول منځ ته راځي او د خصوصي مالکیت صحنه پر لګول کېږي. لومړنۍ ټولني د (خېل) په لومړنۍ مرحله کي ژوند کوي، او د دغي دورې ډېره اوږده زمانه د مورواکۍ نظام په کړۍ کي تېرېږي، تر دې وروسته نو (خېل) د پلارواکي نظام ته داخلیږي، چې هغه بیا به خپل وار د ټاکلو زېربنایي روابطو محصول ګڼل کیږي" (۴:۱۳۶۰).

تر دغه څه وروسته ښاغلي عطائي داسي څه کښلي دي: "د خېل په مرحله کي پښتانه د نورو آریایي اقوامو سره ګډ دي، چې د هندوکش او سلېمان د غرونو په لمنو کي اوسي"(۱۱:۱۳۶۰).

د هندوکش او سلېمان د غرونو لمني یا لا تنګي درې پناګاه وي وې. دغه د تېتېدلو قومونو له پاره د ځان ساتني ځایونه ول. غښتلي او پیاوړي قومونه په داسي سیمو کښې اوسي چې هغه یا د غلو پرېمانه حاصلات ولري یا د مېوو پرېمانتیا ولري. نو دوی ولي او کله و دغو ځایونو ته له کومو ځایونو څخه ورغلي ول؟

په بخوا کښې خېلزیان په مېدیا (مېځیا) کښې اوسېدل چې مرکزي ښار ئې اګمتانا، (اوسنی همدال ؤ) او تاریخي پېژندلئ بادشاه ئې ضحاک (ځهاک) ؤ، چې د نمر شان ئې لارء.

ابدالیان یا زیرک د کسپین بحیرې په سوهېل ختیځه خوا کښې اوسېدل چې مرکزي ښار ئې ارڅک آباد یا اوسنی عشق آباد ؤ.

د اسلام لښکرو راوشړل او پسي راواخیستل. خېلزیان د منځني افغانستان په غرونو او درو ځني نوتل او زیرک یا ابدالیان د کوړک - کسي او سلېمان په غرونو او درو ځني نوتل. دوی خپل وطنونه پرېښوول خو تر اسلام دمخه خپل دین ئې نه پرېښاوء.

د پایلامې غوندي ښاغلي عطائي داسي کښلي دي: "لکه د خېل کلمه چې د خپل

اصلي مفهوم څخه چي هغه په نسبي مورد کي استعمال دئ په عام مفهوم هم راځي. نو د زی کلمه بیا داسي نه ده او یوازي په هغه خاص نسبي مفهوم کي استعمالیږي.

"په دې برخه کي ژوره څېړنه دا نتیجه په لاس راکوي چي په نسبي مورد کي د خېل تر کلمې د (زي) کلمه لرغونې سابقه لري. په خاصه توګه که د دغي کلمې ریښې په هندو اروپايي او لرغونو باختري ژبو کي وڅېړو. نو دا مطلب به په ښه توګه و ثبوت ته ورسیږي" (۱۳:۱۳۶۰).

د (– زی) وروستړونئ په پښتو ژبه کښي لرغونتوب لري. خو د (– خېل) وروستړونئ که تر (– زی) لرغونی نه وي، ښايي هم زمان به ئې وي. خو په پښتو کښي ئې کارېدنه تر (– زی) وروسته ده. (خېل) مکدوني لغت دئ. او د لوی سکندر Alexander له اشغال سره سم و دغي سیمي ته راوړ‌ء سوئ دئ. داسي ایسي لکه ډېر مکدونیان چي به له خېلزیو سره اوسېدلي او ورسره ځایان سوي وي. په خپله لوی سکندر لا د خېلزیو لباس خوښ کړی او اغوستئ ؤ.

بل دا چي له نامه څخه ئې داسي حدس وهل کېدای سي چي تره کي Taraki قبیله دي لا هم مکدونیان ول، چي په یوانې ژبه کي trakian بلل سوي دي یا داسي بلل کېدل. نو د خیلزیانو نوم هم "دخیل آرک" له نامه څخه اخیستل سوئ دئ. ښه، نو د (– خیل) وروستړونئ هم بې قدامته نه دئ، او له (– زی) سره هم زمانه بلل کېدلای سي.

"هغه خېلونه چي د ښځو په نامه دي"

"پښتني خېلونه د یوء کل په ډول د نارینه وو په نومونو یادیږي لکه احمدزي، سلیمان خېل، بارکزي او داسي نور. خو داسي خېلونه هم سته چي هغه د ښځو په نامه مسمی دي لکه متوزي، زخه خېل، رانې زي، او داسي نور" (۲۴:۱۳۶۰).

ښاغلي عطائي څه وروسته داسي ورپسي کښلي دي: "یوه بله مشهوره قبیله چي د ښځي په نامه یادیږي، مموزي Mamoxzi دي.

غلجي اقوام د یوء کل په ډول (متوزي) هم بلل کیږي او دغه نوم د هغې (متو) څخه اخیستل سوئ دئ چي د (بېټ یا بیټني) نیکه لور وه، او د غور شهزاده ته واده سوې وه او د هغې اولاه د متوزو په نامه سره یاده سوه" (۲۳:۱۳۶۰).

بېټ نیکه بېد نیکه ؤ، "بېد" ؤ. د ده وینا دا ده چي بادشاه وله غوندي سیوری لري، خو ثمر نه لري، نو بېد نیکه د غزني بهرام شاه ؤ، خو بېټنئ نیکه بیا هغه پښتون سپاه سالار ؤ چي د بېټ نیکه یا بهرام شاه په چوپړ کي ولاړ ؤ او خپل پښتني لښکر یا سپاه ئې لرل.

خو بي بي متو بیا (بي بي مهدو) وه. دا (مهد عراق) هم نومېدله. دا د عراق او شا ؤ خوا د بادشاه ملک سنجر سلجوقي لور وه چي و بهرام شاه ته ئې ور واده کړې وه.

د غور شاهپور چي د بهرامشاه لور بي بي مهدو ور واد‌ء سوې وه، دی حسین قطب الدین ؤ چي د ورونو له لاسه ئې و بهرام شاه ته پناه وروړې وه.

وګړيزه هنګامه ئې داسي ده. دوی وايي چي غيلزي په غلا زوکړي دي، ځکه نو دغه غيلزي نوم اسم بامسمی. نو يا دغسي بلنه که څه نه وي، بې څه به هم نه وي. حسين قطب الدين چي د ملک شنسب مشر زوی ؤ، تر دۀ وروسته د غور بادشاه سو. خو دی لکه مينده مړ ډېر عياش ؤ. له همدغه اسيته څخه ئې ورونه ورته بوږرګي سول او دی ئې وتېښتي ته اړ ايستئ. دۀ چي د غزني و بهرام شاه ته پناه وروړې وه، او هغه خپله لور ور وادۀ کړې وه په دغه کار سره دغه مست مړ د بهرام شاه د حرم سرای ته لار موندلې وه. دی چي ښايسته ځوان ؤ، نو ئې له خوابني څخه نيولې تر خوښينانو پوري له ډېرو سره عشق بازي کړې وه. دغه کار خو نو خود د غلا کار ؤ. څوک چي به ئې په هغيو زېږولي ول، نو هغوی خود ټول د غلا زامن او غلزيان يا غيلزي ول. ځکه نو د بېټ نيکه زامن غيلزي وبلل سول. له همدغي تورا سره ټول خيلزيان په وروسته کښي غلزيان سول. ای په غلا سره زوکړي وبلل سول.

بهرام شاه چي په دې غلا ونغوړېدئ چي لوني ئې نامړوښې ورلي سوي او لنګي سوي دي، نو ئې د غور شاهپور حسين قطب الدين په زهرو سره وواژۀ، د دغه کار له اسيته څخه ده خپله بادشاهي هم بايلوله.

هغه نور خېلونه چي د ښځو په نامه سره ياد سوي دي ښاغلي عطايي ئې يادوني کړي دي.

"په اپرېدو کي (زخه خېل) يو لوی ښاخ دئ چي د (زخې) انا په نامه سره يادېږي. دا ښځه د اپريدي (عثمان) د لمسي (ماپې) د زوی ماندينه وه. هغه خېل چي دی يعني زخي ته منسوب دئ، دا لاندي درې ښاخه ئې ډېر مشهور دي: بوړئ، شانخېل، نورالدين خېل دي. همدارنګه په پېښور کي د ککيانو خېل دئ چي د خپلي انا (ککۍ) په نامه سره يادېږي. ککۍ د (کند) نيکه د راوي ښېښخي لمسۍ وه، چي قبيله ئې په نامه ياده سوې ده. د اتمال د مور نوم (رانۍ) وه چي خېل ئې رانيزي بلل کېږي. دغسي هم د خښې يا ښيخي په لړ کي عايشه زي دي.

## وېش:

"... په هغه مهال کښي چي ټولنه د قبيلوي جوړښت په لحاظ د خېل په مرحله کښې واقع وه. نو هلته د توليد وسايل مشترک ول، او هر څه چي موندل کېدل، هغه د ټولو ول" (عطايي، ۱۳۹۱:۲۹مخ).

"... د توليدي وسايلو محدوديت دوی و زيات کار ته اړ کړي ول او دغه کارونه بايد په ګډه سره و سر ته رسېدلي وای، او د دغه ګډ کار محصول هم بايد په ګډه تر ګټې لاندي راغلئ وای. په دغه مرحله کي له فرد څخه د فرد استثمار نه ؤ. دغه نو د هغه سيستم خصلت دئ چي د لومړي اشتراکيت په نامه يادېږي" (۱۳۶۰:۲۹).

وروسته ښاغلي عطايي د وېش په اړوند داسي کښلي دي: "د وېش په سيستم کښي د کرني مځکه د يوه ټاکلي وخت له پاره، د کورنيو او خېلونو تر منځ وېشل کېدله، او کله چي به دغه وخت پوره سو، نو دغه مځکه به بيا

سره ټوله سوه، او د پچي په دود به وېش پر وسو، او هر چا ته به يوه - يوه برخه ورورسېدله" (۳۴:۱۳۶۰).

نه په ډېره پخوا زمانه کښي، تش يو - دوه نسله تر مخه لا هري قبيلې او هر خېل يا زيي ټاکلئ شمېر ملاتړ و سرکار ته ورکول. نو سرکار د دغو ملاتړو د شمېر په تناسب سره مځکه او اوبه و هغي قبيلې يا خېل ته ورکولې. يوه وا wa اوبه ئې و هغوی ته ورکولې چي دوی به شپېته (۶۰) سپارء د اړتيا پر مهال د سرکار په خدمت کښي درول.

د شيخ ملي د راپاته سر سري بيا څخه داسي ښکارېږي چي کله يوسفزي د کابل له شمال او ختيځ څخه د ظهيرالدين بابر له خوا څخه ايستل سوي او شړل سوي ول، دوی په ختيځ کښي ديلزاک بې ځايه کړي ول او هم ئې د سوات په دره کښي تور وال مخ پر لوړه شړلي ول. کله چي دغه دره بشپړه د توروالو په لاس کښي وه، نو ځکه دغه دره سوات (سواد) بلله کېدله، چي مانا د تورانو هيواد. له دوی څخه څه نيمه دره يوسفزو نيولې ده. پورتنۍ برخه ئې دکالا موالاو په لاس کښي ده.

تر نامه په پورته ئې د اشغال بل دليل دا دئ چي نو بايد د يوسفزو خېلونو او نسبي ښاخونو ته ئې دغه مځکه ور وېشل سوې وای، او دغه کار شيخ ملي کړئ ؤ، خو دء و نور قبايلو ته هم مځکي ور وېشلي وې، او يا به دغه سوات درې دباندي مځکي د يادو کړو قبايلو وې، خو دء هسي په خپل دفتر کښي شاملي کړي وې. ښاغلي عطايي يادؤنه داسي کړې ده:

۱. د يوسفزو تپه: اشنغر او چار سده.
۲. د محمد زو تپه: د شمالي مردان سيمه او سوات.
۳. دککيانو تپه: دوآبه، باجوړ او چارمنګ.
۴. د داؤدزو تپه: ګلپاني او بګياني.
۵. د خليلو تپه: له پېښوره تر نوښاره
٦. د مومندو تپه: د پېښور شمال-غربي پلو تر جنوب غربي پوري

خوشحال خټک د شيخ ملي او اخوند دروېزه د کتابونو داسي يادونه کړې ده:

په سوات کي دي دوه ځيزه يو جلي او بل خفي
يو مخزن د دروېزه دئ، بل دفتر د شيخ ملي

ولي دا خوند دروېزه مخزن تر اوسه پوري پاته دئ، خو د شيخ ملي دفتر نور چيري له چا سره نسته؟

اخوند دروېزه د پير روښان مخالف ؤ. نو دغه مخزن، څنګه چي ديني کتاب دئ، نو د دغه دينيت له اسيته څخه به "جلي" او هم ښکاره او روښان سره نول سوئ دئ او بيا هم په هغه ټولنه کښي چي دوی به د پير روښان مخالفان ول. نو کېدای سي چي د پير روښان په پيروانو کښي به يا د اخوند دروېزه کتاب "خفي" يا پټ ساتل کېدونئ ؤ، نو يو کتاب به و خواخوږو او پيروانو ته "جلي" ؤ، او هغه بل به "خفي" ؤ. د شيخ ملي دفتر به پټ ؤ چي چا به ښکاره کولای نه سوای.

د شيخ ملي د "دفتر" وېش به هر قبيلې او هر چا نه مانه، ځکه به نو هم مخالفت ورسره ؤ. له همدغه اسيته څخه به هغه له مخالفانو څخه پټ ساتل کېدئ، چي پټ هم پاته سوئ دئ.

بل دا چي کله طالبان و ملايي ته رسيږي او د فضيلت لنګوټه يا بګړۍ تړي، دوی بايد يو کتاب کښلئ يا کتابت کړئ وي، او حاشيه ئې پر کښلې وي. ځکه نو د اخوند دروېزه کتاب، چي يو ديني مخزن دئ، د محتوياتو لرونکئ کتاب ؤ. نو به خود اوز پلاوي نقل، تنسيخ يا کاپي کړۀ سوئ ؤ. خو د شيخ ملي دفتر، وروسته تر هغه چي وېش ئې ورکړئ ؤ او خلګو قرار موندلی ؤ، يا نه ؤ، نور ئې و تنسيخ کولو او کتابت ته اړتيا پاته نه وه.

ښاغلي عطايي د وېش د مدت بېلابېل کلونه ياد کړي دي. دۍ په دغه اړوند داسي کښلي دي:

"د وېش د وخت په باب هم توپيرونه ول. ځينو څلور کاله وروسته، ځينو اته يا لس يا پنځلس او يا شل کاله وروسته وېش کاوه او په ځينو کي داسي رواج ؤ چي د يو وېش په وخت کي به سپين ږيرو د بل وېش پرېکړه (فيصله) کوله" (۳۴).

تر يوه کال زيات کلونو وېش د ښوراوک په برېڅانو کښي د ورشو وو وېش ؤ، په دغه کښي هم د هر (پلار) ورشو بېله وه. خو د کرهنې ځمکه ئې هر کال ځله وېشله. په هر کلن وېش کښي مساوات ساتل کېدئ. چا چي به يو کال د سر يا پای ځمکه لرله بل کال به د منځ يا سر ؤ پای ځمکه وراندي - وروسته ور رسېدله.

"په ځينو وېشونو کي چي د قبيلوي اعتبار څخه به دباندي ول؛ او د ملاترو په نامه ياديري د (دود يا لوګي) په نامه ئې استحقاق تثبيت کېدئ.

وېش به د يوۀ روحاني سړي په وسيله سره کېدئ. د برخو علايم به د يو روحاني سړي په لمن کي واچول سول. بيا به نو يو نابالغه کوچينوټي دغه علايم پورته کول. په دغه وخت کي به د قبيلې ټول خلګ حاضر ول چي د هر چا استحقاق به معلوم سو، ټکان به کېدل، او دغه کار به په خوښيو او ښاديو سره سر ته رسېدئ. د دغه کار د سر ته رسېدو په وخت کي به د منصفه روحاني هيئت له پاره ډېري درنې او غوړي مېلمستياوي کېدلې. د وېش مځکه نه چا خرڅولای سوای او نه ئې په ګروي ورکولای سوای. البته دا کېدای سوای چي د وېش ټوټې دوه کسان په مصلحت سره بدلي (اليشي) کي" (۱۳۶۰:۳۵).

هغه پچه پر اچؤنه چي ما لېدلې وه، ښاغلي عطائي ئې مشخصات ښوولي دي. چا به په پچي کښي يو داغ جوړ کړ يا څه ګرړنه وکړه. دغه به ئې و نورو حاضرينو ته ورښکاره کړه؛ چا به يو نری سپېنسی پر پېچئ يا نوي چا به وتاړۀ، چا به بيا يوه خاشه پکښي جګه کړه؛ چا به بيا خاشه پوري هوري تر وايستله. د خپلو دغه پچي به ئې په يوه لوښي کښي واچولې، او تر لس کلني کوچني هلک به يوه يوه ورکښله. هغه پچه چي به تر مخه وروکښله سوه، و هغه ته د سر مځکه ور رسېدله او نورو ته پرله پسې مځکي ور رسېدلې. وروستنئ کس به پاياو ؤ چي تر نورو وروسته به د پای و مځکي ته د اوبو لګولو وارئ وررسېدئ. زما په ګومان به هغه پچي تر مخه ورکښل کېدلې چي خاشې به پکښي جګي کړل سوي، يا تر کښل سوي وې.

عوض کښې غله ورکول کیږي.

۳- و ګوروان او شپانه ته هم په حاصل کښې ونډه وررسیږي.

۴- و ملا او روحاني کس ته چې سید هم دئ ونډه ورکول کیږي.

۵- سرکار هم د مځکې او اوبو مالیات ځني اخلي. و دغه ته د عطائي صاحب په لیکنو کښې "سیری" ویل سوی دئ، چې دی ئې دغه ونډه ورکړه د وېش د ځله سکولېدني غټ عامل بولي. دء په دغه اړوند داسې کښلي دي:

"د وېش د منځه تلو په غټو عواملو کې د (سیري خورو) زیاتوب ؤ چې په دې ډله کښې قبیلوي خانان، ملکان او روحانیون ول چې د سپین ږیرو په توګه به وېش د دوی په حضور کښې کېدئ او په هر وېش کښې به دوی د کرنې د مځکې ښې ټوټې د سیري تر نامه لاندې ځان ته اخیستلې، او بیا به دغه سیری له وېش ځخه وتلی وي" (۱۳۶۰: ۴۱).

ښاغلي عطائي نور داسې کښلي دي: و هغه چا ته چې به ښه مځکه په وېش کښې ور رسېدلې وه، هغه به د وېش سکولول نه غوښتل، خو هغه کسانو به د وېش و جال - دود ته ادامه غوښته چې ناکاره او بابیزه مځکې به ور رسېدلې وې.

د ښوراوک په برېځانو کښې د وېش جال-دود تر اوسه پورې لا سته، خو د هلمند په پښتنو کښې د کاډیسټر اداري دغه جال - دود په ۱۳۴۳هـ ش کښې داسې و پای ته ورساوء چې په هر چا پورې ئې هغه مځکه ثبت کړه چې دمخه کال په وېش کښې ور رسېدلې وه. دوی ډېره نوره مځکه هم لرله چې آن شپږم کال به د کرنې وارئ ور رسېدئ، دوی به یو کال یوه مځکه کرله او بل کال به ئې بله مځکه کرله. ځکه چې د یوې مځکې په پرله پسې کرلو سره د مځکې سېک ختئ. نو به ئې یو یا دوه - درې کاله شنډه پرېښووله چې بل کال ئې ښه بشپړ حاصل ورکړی وای. دوی د حکومت و کاډیسټر ته وویل چې هغه نوره مځکه هم د دوی ده. حکومت ورته وویل چې داسې ده، نو تاسې خو ئې سل کاله مالیه راکړې نه ده. که مځکه غواړئ، نو به ئې د سلو کالو مالیه راکوئ. ځنګه چې دوی ئې دغه مالیه ورکولای نه سوای، نو مجبوره ول چې د مځکې تر سر تېر سي.

کله چې په ۱۳۵۸ ش کښې حکومت خلقیانو ته په لاس ورغلئ، دوی دغه اخیستې مځکې د کونړ، لغمان، او ننګرهار و بزګرانو ته ورکړې. دوی ئې د یادو کړو ولایاتو ځخه په دودېرش بسونو کښې له یوء-یوء لنډې ټوپک سره ور واستول او هغه مځکې ئې پر ووېشلې. نورو خلکو چې به هر چا تر دېرشو جریبو ډېره مځکه لرله، هغه ئې ځني واخیسته او پر دغو بزګرانو ئې ووېشله.

په خلقیانو پسې پرچمیان و قدرت ته ورسېدل. په دوی پسې قدرت د مجاهدینو سو. په دوی پسې وار و طالبانو ته ور ورسېدئ، دا چې هغه وروستل سوي مهاجر ځه سول، ځای پر ځای پاته سول، که بیرته و خپلو کورونو ته ستانه سول، زء ځني اګاه نه یم.

ښاغلي محمد ابراهیم عطائي د سیري په اړوند داسې کښلي دي:

"سیری د کښت هغه مځکه ده چې په

وېش کښې نه راځي. د شیخ ملي په وېش کښې سیری یواځې د عامه خدمتونو له پاره یوه وقفي ټوټه وه چې د هغې له حاصل څخه به کار اخیستل کېدئ. خو ورو-ورو یو شمېر اشخاصو د ځان له پاره هم سیري جلا کړي او د مځکې یوه ټوټه به ئې له وېش څخه و ایستله او په دایمي توگه به ئې د خصوصي ملکیت ټاپه پر ولگوله".

دء ورپسې دغه کسان داسي ښوولي دي:

"په لومړي سر کي میاگانو او پیرانو سیري ځان ته واخیستلې. څنگه چي وېش د دوی تر نظارت لاندي کېدئ، نو دا یو ډول شکرانه وه چي د بگړۍ ونډ له خوا څخه و دوی ته ورکول کېده. په دوی پسي سپین ږیرو چي ملکان او خانان ول هم سیري واخیستلې. پس له هر وېش څخه به یوه اندازه مځکه په سیري کي ورتله، او د سیري د وېش د منځه تلو عامل وگرځېد" (۱۳۶۰: ۴۶).

ښاغلي عطائي له هري سیري سره اوز کرښي بیان کښلئ دئ. زه به ئې یوازي نومونه ځني درکم: د مسجد د تېلو یا د ځراغ سیري؛ د اوجړې سیري؛ د کسبگرو سیري؛ د کسبگرو سیري؛ د میاگانو سیري؛ د ملکانو سیري؛ کاسیري، کوټه (۱۳۶۰: ۴۶).

د پخوانیو وړاندوینه ده چي د مځکي تناوونه به لنډ سي او اوس نو رشتیا هم تر لنډسوو لا لنډ سوي دي. ځایان خلک پر لیرو او نژدو وطنونو وگرځېدل. سترگي ئې وسپځېدلې، مکتبونه او پوهنتونونه ئې وویل، رادیوگانو، تلویزنونو، او موړک تلیونونو، مټرانو او طیارو له ذهني توري تیارې څخه ور وایستل. خلک لکه دوې-درې پېړۍ تر مخه چې په اروپا کښې له کلیسا سره په جنگ ول، او بالآخره ئې ذهني آزادي ځني واخسته. اوس په اسلامي ممالکو کښې هم هغه ته ورته جنگ پیل سوی دئ. د مدنیت له څنگه سره به خود بل عامل هم لري چي هغه به مدني نه، بل لا سیاسي وي. دغه سیاسي عامل په اسلام کښې وضعیت ویجاړ کړئ دئ. څوک په پوهۍ او څوک په ناپوهۍ ورسره پکو دي. دوی د اسرائلو ضد دي، او هم له دغه اسیته څخه او هم د گاونډیو د امتیازاتو غوښتني له اسیته څخه مادي او روز نیزه مرستي ورسره کیږي. و دوی ته وسلې او درستي ورکول کیږي.

## پایلامه:

دغه د (وېش) او (خېل) تنظیم چي په یو شمېر گوښو او لیرو ټولنو کښې پاته دئ، د پخوانیو اجتماعي او سیاسي شرایطو پیداینښت دئ. هغو شرایطو چي دغه نظم او نظام پیدا کړئ ؤ، هغه شرایط او حالات نو اوس نور نسته. خو پیداینښتې لا پاته دي. دغه شرایط څه او څنگه ول؟ او ولي ئې و دغه نظم ؤ نظام ته په ټولني کښې موجودیت ورکړئ ؤ.

دغه عوامل او شرایط چي د خېل او وېش ونظم ؤ نظام ته ئې ستوالئ ورکړئ ؤ، د عمومي حکومت غښتلوالئ او بې ثباتي وه، باتوروالئ او فساد ؤ، موجودیت د حکومت غښتلوالي او تورتوالي پیدا کړئ ؤ، خو فساد او بې ثباتي ئې د حکومت ضعف او کمواکي وه.

په غښتلي حکومت کښې، د ځرگندوني

ته راوړل کېدل چي زموږ د ځوانانو او احساساتي سياسيونو د افکارو دمغشوشېدو عامل به سول.

د لومړۍ او دوهمي نړۍ والي جګړې تر منځ نړۍ والو استعماري ځواکونو په اسلامي نړۍ کي و خپلو موخو ته د رسېدا له پاره نوي چمونه، ټګۍ او دوکې پيل کړې. د خپلو فعالو استخباراتي کړيو او سړيو په لاس ئې په مسلمانانو او اسلامي هېوادو کي د پان عربيزم، پان ترکيزم او پان ايرانيزم روحيه داسي پياوړې کړه چي د خدای بخښلي هاتف صاحب د ليکونو په استناد لارنس (Laurence) په عربستان، عراق، اردن او مضافاتو کي ئې د نسب په سلسله کي شريف حسين د ترکي اسلامي خلافت سره وجنګاوه. د ترکانو د خلافت لاس ئې له دې مځکو څخه ورلنډ کی او د انګرېز لاس ئې ورخوشي کئ. په ظاهر کي عربي قومي حکومت او په حقيقت کي د پرنګي نيابت او تحت الحمايه ګي ئې تاسيس کړه. وروسته ئې عبدالعزيز آل سعود په عربستان کي و شريف حسين ته راپورته کئ او عرب ئې په خپل منځ کي سره ووېشل. زموږ په دې سيمه کي بيا د ژبې د فوقيت او برتريت او د تاريخي واقعيتونو د تحريفولو له پاره پان ايرانيزم خورا تاو واخيستی او خپل تبليغات ئې پيل کړل. د رضاشاه پلار رضاخان د هېواد نوم له پارس څخه ايران ته واړاوه او ځان ئې د ارياني نژادو مورينه او پلرنی ټاټوبی وباله چي د غازي امان الله شاه د حکومت له جدي غبرګون سره مخامخ سو او په فرهنګي او ادبي برخه کي د پخواني پارس او نوي ايران پر ضد لوی کمپاين پيل سو، د هغو د غندني په لړ کي ليکني وسوې، طنزيه قصيدې او نظمونه وويل سول، چي د يوې قصيدې يو بيت ئې ما خورا ډېر پخوا اورېدلی دئ خو له بده مرغه د ويونکي نوم مي اوس په ياد نه دئ. دابيت داسي وو:

زبان مردم ايران زبون است
دوکان مردم ايران ... است

د ايران لوري د خپل جاه طلبۍ او وسعت طلبۍ په لړ کي داسي ديپلوماتيک عناصر دلته په افغانستان کي وګومارل چي د دربار د ځينو غوړه مالو او ځينو عُقده يي سياسي ليکوالانو له احساساتو څخه ئې ناوړه ګټه اخيسته او د دوی په مرسته ئې د نفاق زوني کرلې او د واقعيتونو کوږوږ حالت ئې بياناوه، چي په دې لړ کي د مهدي فرخ کتابونه ئې ښه نخښنه ده. دا لړۍ ورځ تر بلې پراخېدله او نور لاسونه هم د ايران مرستي ته ورغزېدل او ايراني مطبوعاتيانو او ليکوالانو ته ئې دا جرئت ورکاوه چي هر څه په بله بڼه واړوي او پر موږ باندي ئې وترپي. هم خپل اولس او هم زموږ د افغانستان ځيني ښوېدلي وغولوي.

د دې لړۍ يو کتاب د ډاکټر محمود افشار يزدي "افغان نامه" دئ، چي پر دغه کتاب باندي خدای بخښلي عطايي صاحب يوه خورا مغتنمه کره کتنه کړې ده، چي ځيني برخي به ئې ستاسي سره شريکي کړم.

اصل کتاب "افغان نامه" نومېږي، په درو ټوکو کي کښل سوی دئ، ليکوال ئې دوکتور محمود افشار يزدي دئ، په ۱۳۵۸ ل کال کي په تهران کي چاپ سوی دئ. پر دې کتاب

باندي کره کتنه "نقد بر افغان نامه" نومېږي، د اکاډیمیسن د نوماند محمد ابراهیم عطایي لیکنه ده، ۵۴ مخونه لري، په ۱۳۷۲ ل کال کي د خوشال فرهنگي ټولني له خوا چاپ سوی دئ.

عطایي صاحب زموږ د هېواد په اړه ایراني آثار پر دوو برخو وېشي، یوه هغه ډله آثار چي د احساساتو او تعصب له مخي په لاسي (عمدي) توگه او یا ناپوهۍ کي زموږ د کلتور یوه برخه په ځان پوري تړي او دوهمه ډله آثار چي عطایي صاحب ئې هم هېښ پېښ کړی دئ، هغه دي چي زموږ هر څه په ایران پوري تړي او پر موږ ئې د بطلان کرښه کش کړې ده او "افغان نامه" هم له دغي دوهمي ډلي څخه گڼي.

د "افغان نامې" لیکوال د کتاب په سر کي دا اخلاقي ژمني کوي چي درواغ به نه وایي او رشتیا به تر هغه ځایه چي په خبر دئ بې ویلو نه پرېږدي. (لومړی ټوک۱۳-مخ) د کتاب د کښلو انگېزه داسي ښيي: هېښ پاته یم چي د نوي افغانستان تاریخ پوهان په یوه رغ په خپلو کتابونو او مقالو کي ایران د خپل ټاټوبي او تاریخ د شریک په توگه هیڅ نه یادوي، گواکي پر چوپتیا په یوه صلاح سوي دي او یا رسمي امر (دستور) ورته سوی دئ، نو ځکه زه دغه "افغان نامه" کتاب کاږم. (لومړی ټوک۲۹۹-مخ)

د درېیم ټوک په ۴۶۳مخ کي خپل دولت د پان ایرانیزم ملاتړ ته رابولي او د ژبي (پارسي) پر بنسټ باندي د ایران، افغانستان، تاجکستان او پاکستان د ملي وحدت له پاره په یو لنډ مهال کي د وسایلو تهیه غواړي. د دغه ټوک په ۴۸۲مخ کي بیا ټول ایراني نژادان، د ده په اند، پاړسیان، افغانان، آذریان، کردان، بلوڅان، تاجکان او داسي نور د څو زره کلن گډ تاریخ، گډي ژبي او ادبیاتو د ساتني او د رناوي له پاره د توراني او سامي نژادو یعني ترکانو او عربو خطرونو په وړاندي یووالي ته رابولي.

کله چي د افغان او افغانستان بحث ته راځي تر لوی احمد شاه بابا وړاندي افغان او افغانستان په رسمیت نه پېژني، میرویس نیکه، شامحمود او شاه اشرف ایرانیان بولي او د دوی واکمني د ایران د پاچهیو د لړۍ یوه برخه گڼي او په خورا سپین سترگۍ سره د لوی احمد شاه بابا له خوا د معاصر افغانستان جوړېده یوه تاریخي تېروتنه او ستره گناه بولي، او راتلونکي دې ته رابولي چي د دې خطا(؟) د تکرار مخه ونیسئ.

د افغان تاریخ لیکني لړۍ په ناوړه کلماتو یادوي او د لومړي ټوک په ۲۹۳مخ کي یو ځای کاږي: "... د افغانستان لیکوالانو هم په تاریخ جوړولو او تاریخ لیکني پیل کړی دئ یعني په خپله سلیقه تاریخ کاږي".

دا کرښه دا معنا لري چي زموږ د افغانستان تاریخ باید متعصب ایرانیان او یا د هغو تالۍ څټي لیکوالان وکاږي او د بل چا په دې کي څه حق نسته.

د دغه ټوک په ۱۹۵ مخ کي بیا بل ځای کاږي: ... په دې راوروسته کي په افغانستان کي غواړي کوږ ببل تاریخ د داستانونو له پیله څخه وکاږي. د هغو کتاب که جعلي و نه

وایم مصنوعي رنګ لري، چې نړۍ وال به ئې و نه مني.

د "افغان نامې" د لیکوال په اند نړۍ وال یعني ایرانیان او په ډېري تنګ نظرۍ او د شیعه او سني په مذهبي تعصب لړلې او ککړې لهجې سره زمونږ د هېواد او تاریخ پر یو ستر عالم لوی استاد علامه حبیبي باندي دا نیوکه کوي چې د معاویه له نامه سره ولي حضرت کلمه کارول سوې ده. عطایي صاحب په خپله کره کتنه کې په دې اړه کاږي: د کتاب لیکوال په مذهبي تعصب کې دونې ډوب سوی دئ، چې د بل مذهبه کس له پاره د درناوي یوه کلمه هم زغملای نه سي. له داسي کس څخه د تاریخي پېښو د قضاوت او لیکنې څه هیله کېدای سي چې له یوې خوا د پېښو شرح د خپل ذوق تابع ګڼي او خپله خوښه او ناخوښه په تاریخي تحلیل کې ور ګډوي.

لیکوال یزدي د تاریخي سیمو په ټاکنه کې هم پرېکنده پرېکړې کوي او د کوشانیانو په کورنۍ کې د ستر کنیشکا د پاچهۍ دوې پلازمېني پرېشي پورا (پېښور) او کاپېشه (کاپیسا یا بګرام) یو په پاکستان او بل په ازبکستان پوري تړي. عطایي صاحب په دې اړه کاږي: وګورئ دا نامهربانه دوست څنګه پر یو څرګند تاریخي فکټ باندي چې د کنیشکا پلازمېنه کاپیسا یا بګرام دئ او د هغه په اړه هیڅ څېړونکی تر ننه پوري شک ته لاره نه ورکوي، هغه یو مجهول شی یعني د کنیشکا پلازمېنه په ازبکستان کې ګڼي او په ډېري زړورتیا پر خپلي دې ادعا باندي ټینګار کوي.

د "افغان نامې" رشتیا ګویه لیکوال د کتاب په یوه بله برخه کې بیا ډېر احساساتي کېږي او افغاني مؤرخ خدای بخښلی غبار تر ستوني نیسي او په دې ګناه چې "ماهوي سوري" ته ئې وطن پرست خطاب کړئ دئ، پسله ۱۳ سدیو څخه محکمې ته راکشوي او د لومړي ټوک په ۴۳۴-۴۳۳ مخونو کې کاږي:
"... ښاغلی غبار ماهوي سوري تقریباً یو وطنپرست راپېژني ځکه د هغه په اند ماهوي د افغانستان او عربو ګډ دښمن یزدګرد وژلئ دئ. په داسي حال کې چې ښاغلی غبار باید پوه سي چې خاین، جاسوس، غل، وژونکی او دې ته ورته کسان په هر ځای، هر مهال او له هر اولس او هېواد څخه که وي پلید دي او د ستاینې وړ نه دي. نه پوهېږم ښاغلي غبار په کوم علت د ماهوي سوري دا جنایت ډوله کړنه خوښه سوې ده".

عطایي صاحب د دغه بحث په اړه پخپله کره کتنه کې کاږي: "... ګرانه لوستونکې! د تاریخ د قاضي کلماتو ته چې د یو مستبد، تېري کوونکي او بې زړه پاچا د وژونکي ماهوي سوري په اړه ئې کړي دي، پام دي دئ؟

خدای خبر چې د دغه بوډا (د افغان نامې مؤلف) پر اعصابو څوني فشار راغلی دئ، چې داسي له هیجان او ولولو ډکي کلمې ئې له قلمه راڅخېدلي دي؟ او آیا د یو پوه او عالم اخلاق دونې اجازه ورکوي چې د یو کس د ستاینې په اړه یو افغاني مؤرخ ته داسي زېږې او ترخې کلیمې وکاروي؟

د افغان نامې په بله برخه کې زمونږ دوه نور مورخین خدای بخښلي احمد علي کهزاد

او خلیل الله خلیلي هم د لیکوال یزدي له خوا بې ترټنې پاته نه دي، خو په پسته او نرمه توګه ئې غوړونه ورپیچلي دي. کهزاد ئې په دې کړلی دئ چې د افغانستان د تاریخ په لومړي ټوک کې ئې په لنډه توګه لیکلي دي چې له پېشدادیانو او کیانو څخه جمشید، فریدون، کیکاووس، کیقباد او کیخسرو له بلخه راولاړ سوي، ګرده افغانان دي، ځکه بلخ د افغانستان یو ښار دئ.

یزدي کاږي: ... هغه مهال چې د افغانستان نوم نه وو او هر ځای په شهنامه کې د توران په وړاندې د ایران بحث کېږي.... باید تاریخي پېښې او افسانې په هغه ډول راوړو چې پېښې سوي او ذکر سوي دي. (لومړی ټوک، ۱۸۸مخ)

عطایي صاحب پر دغه برخه باندې کاږي: ښاغلی توصیه کوونکی که عارفانه تجاهل و نه کړي، باید هېر نه کړي چې د شهنامې ایران او د ده (خیالي لوی اېران؟) مځکه او اسمان توپیر لري. د شهنامې ایران هغه اریانا ده چې د افغان نامې لیکوال ئې مجهول ګڼي. له هغه ځایه چې ښاغلی مؤلف د سفسطې په ډول په کلماتو لوبې کوي او ادعا لري چې پنځوس، شپېته کاله له مخه اعلان سوی سیاسي اېران، له تاریخي جغرافیایي اېران (اریانا) سره یو دئ، خو دا خبره هیڅ څېړونکی منلای نه سي.

کله چې کهزاد د پرونۍ اریانا او وروستني خراسان تاریخي جغرافیه بیانوي، د افغان نامې مؤلف په ډېري سپین سترګۍ د خراسان لرغوني حدود او هم بلخ په ایران پورې تړي او کهزاد ته په خطاب کې کاږي: "..... دغه بلخ او نور ښارونه چې نومان دي راوړل د لوی ایران یوه برخه ده." (لومړی ټوک۱۹۰-مخ)

او خلیلي په دې کړي چې محمود غزنوي او مسعود غزنوي د افغانستان ټولواک او شاه زوی ګڼي، خو د خلیلي ترټنه نسبت و نورو ته ډېره په دې پسته ده، چې ده د ایران او د افغان نامې د لیکوال ستاینه (مدحیه قصیده) ویلې او د ایران په مطبوعاتو کې خپره سوې وه.

د متعصبو ایرانیانو و دې لویې محکمې ته زموږ یو بل شخصیت چې لیکنه ئې د جرم د سند په توګه وړاندې کېږي، ښاغلی دوکتور عبدالحکیم طبیبي دئ. د هغه یوه مقاله په ۱۳۵۳ل کال کې د یغما ایرانۍ مجلې د ۲۷کال په څلرمه ګڼه کې "افغانستان او هند او د هغوی تاریخي اړیکې" په نامه خپره سوې ده. د مقالې محتوا ګرده، په ځانګړې توګه دغه دوې برخې د یزدي ډېر خښم راپارولی دئ او د افغان نامې د لومړي ټوک په ۱۹۴ مخ کې کاږي:

"... (د افغانستان او هند دوستي لکه تل د سکندر له خوا د منځني ختیځ او اېران د نیولو پر مهال هم...) (کله چې سعد ابن ابي وقاص په قادسیه کې د ساساني واکمنۍ لښکري ماتې کړلې... افغانستان د عربو او اسلام د لښکرو په وړاندې ټینګ ودرېدل.) هیڅا ته پټه نه ده چې د سکندر پر مهال هخامنشي دارا او د سعد ابن ابي وقاص پر مهال ساساني یزدګرد د ګرده ایران تر هنده

پوري پاچهان ول، د افغانستان دولت او ملت خارجي وجود نه درلودئ، چي داسي او هغسي ليکلي شيان دي پېښ سوي وي".

د دې مطلب په پای کي خپله ګيله داسي کاږي: دا ټول د دې دليل دئ چي په وروستيو کلو کي د افغانستان ځيني ليکوال هر اړخيزه هڅه کوي، څو کېدونې وي د ايران نوم له ګډ تاريخ څخه ورک سي. د دوی د دې لېوالتيا له اسيته زه د دغه کتاب ليکلو ته اړ سوم (لومړی ټوک ۱۹۵-مخ).

عطايي صاحب د "افغان نامې" د مولف په اړه کاږي: "... مؤلف امانت ساتونکی تحليل ګر نه دئ، تل په اقتباساتو کي هم لاسوهنه کوي، د اصل متن نومونه بې له اړتيا څخه د خپلي ګټي له پاره په ليندیو کي راوړي لکه په لاندي متن کي:

"فرانسوی لس ټوکيز لوی لاروس د ۱۹۶۸کال چاپ د لومړي ټوک په ۵۶۷مخ کي د اريان، آريانا او اريانه په اړه کاږي: (اريان)، (آريانا) يا (اريانه) هغه نوم دئ چي په پخوا کي د ارينانو ټاټوبي ته کارېدی او د پارس (ايران او افغانستان) د ټولواکمنۍ (شاهنشاهۍ) په ختيځه خواکي وو" (لومړی ټوک، ۵۲مخ).

وګورئ! په ليندیو کي (ايران او افغانستان) او ټولواکمنۍ (شاهنشاهي) خپله مولف پکښې زيات کړي دي او د اريان، آريانا، اريانه، ارينو کليمې ئې هم په دې دليل په ليندیو کي راوړي چي خپل جعل پکښې پټ کړي او په پسې مطلب کي د افغانستان مؤرخين هم ګواښي چي لاروس د آريانا نوم په افغانستان پوري ځانګړی کړئ نه دئ. بل ځای د ابن بطوطه له سفر نامې څخه را اخلي: "ګرده د باندنيان په هندوستان کي خراساني بولي يعني ايراني" د دې کرښي د پای يعني ايراني د افغان نامې د ليکوال زياتونه ده او همداراز د افشار نادر د سکې د يوه مخ په مهر کي د بيت دوهمه مسرۍ يا نيم بيتۍ له ځانه وراچوي. په زړه پوري لا دا چي د افغانستان تاريخي کورنۍ، لکه د هرات طاهريان، د سيستان سپاريان، د ماء والنهر سامانيان، د غزني غزنويان او د غور غوريان ګرده ايراني کورنۍ بولي.

د "افغان نامې" يوه بله ډېره خطرناکه او له تعصبه ډکه موضوع د افغانستان د ژبو په اړه ځيني يادوني دي او په افغانستان کي د ژبنيو تعصباتو له خطره ډکي لمسوني دي چي د افغانانو د تفرقې له پاره په ډېر شدت په دغه کتاب کي راپورته سوي دي. ده په ۱۳۴۰ل کال کي و افغانستان ته کوم سفردرلود د خپل دغه سفر ځيني خاطرې او يادښتونه راوړي او هر ځای تر دې يادښت وړاندي يا وروسته هرومرو دا ليکي چي زه د افغانستان په کورنيو مسايلو کي لاسوهنه نه کوم.... نه پوهېږم چي دی لاسوهنه څه ته وايي؟ د لومړي ټوک په ۲۰ مخ کي کاږي: "... يوه ورځ د افغانستان د اطلاعاتو وزارت د افغان مطبوعاتو له خوا يوې غرمنۍ ته وربلل سوی وم، که څه هم زه پاړسي ژبی يم، کابليان پاړسي ژبي دي، خو بلنليک په پښتو رالېږل سوئ دئ. (دلته د ندائيې يوه معنا داره نخښه ورسره مبنلول سوې ده، څو پام ډېر ورته راواوړي) او زه اړ

سوم چي دابلنليک يو چا ته د ژباړې له پاره وسپارم، زه شکايت نه کوم، دا د افغانستان د دولت او ملت حق دئ..." يو مخ وروسته ئې بيا زړه دربېږي او ليکي: "... غواړم پوه سم چي په دغه ۲۸ کلو کي د دغو دوو هېوادونو تر منځ څه پېښې سوه چي يو ايراني دوست ته په پښتو بلنليک لېږل کېږي او هغه د پوهېدو له پاره ژباړن ته رجوع کوي. زه په دې کار نه لرم چي د کابل د کوڅو لوحې چي يو پاړسي ژبی ښار دئ، په پښتو دي. ځکه په دې اړه نظر ورکول د افغانستان په کورنيو چارو کي لاسوهنه ده او زه پرهېز څني کوم" (لومړی ټوک، ۲۱مخ).

په درېيم ټوک، ۷۳-۷۲مخونو کي بيا دا خبره راپورته کوي او څو نوري غرضي خبري ورسره ملګري کوي او کاږي: "... (هغه پخوانی بابولاله ده) وګورئ! د بلنليک ليکونکي پاړسي ژبي، زه پاړسي ژبی، کابل ښار پاړسي ژبی، خو په دې ښار کي ما ته بلنليک په پښتو راځي! (بيا ندائيه علامه ورسره موښلي). زړه ئې په دې هم سوړ نه سو او د درېيم ټوک په ۲۰۴مخ کي بيا دا خبره رااخلي او لاس وهنه ئې په ځرګند تېري او تعرض اوړي او دا ورسره زياتوي: ...ما د افغان متعصبو سياسيونو چي په سر کي ئې محمد داؤد خان صدراعظم ولاړ دئ د دغه بلنليک له اسيته ورسره و نه ليده. مصيبت لا دا ګني چي د دې مېلمستيا خبر په انيس کي په پښتو چاپ سوی وو.

خدای بخښلی عطايي صاحب د دې برخي په کره کتنه کي ليکي: ... ليکوال له ډېره عصبانيته دا کيسه مکرراً راوړي او خپل ذهني تمايلات ورسره ګډوي چي د منلو وړ نه دي. دا ليکنه که په ځير ولوستله سي او قضاوت وسي. دغه عالي جناب په رښتيا هم زموږ په کورنيو چارو کي لاس نه وهي او له لاسوهني پرهېز کوي. د پاړسي په وړاندي د پښتو غندنه کوي او له ترکي ځخه کوړتې کرکه لري. ليکوال يزدي له ډېره عصبانيته له معمولو علمي ادبي آدابو ځخه ليري سوی او د پښتو په ستر شاعر خوشال خان خټک پسي ئې سپکي سپوري ليکلي دي. د ليکونو په استناد غلطي احصائيې په کتاب کي راوړي، د تاريخي پېښو او سنو په اړه ئې معلومات غلط دي. خپل ايراني مهدي فرخ ئې په دې غندلی دئ چي د هغه آثارو په افغانانو کي سوء تفاهمات زېږولي دي. عطايي صاحب د دغه بدمرغه اثر تر ټولو خطرناکه او بده برخه هغه ګڼي چي د ژړنژادو پرديو ترکانو او دښمنو تورانيانو د خطر پاړونه په ښو الفاظو نه کوي او ټول ايراني نژادان د هغه په وړاندي راپاڅوي. د کتاب په ځينو مسايلو کي ئې ډېر معتبر علمي آثار او منابع د کوچنيو خبري اژانسونو په خبرونو رد کړي دي. د عطايي صاحب توصيه دا ده چي دا اثر نه يوازي تحليلي نه دئ، بل لا د افغانستان او افغانانو په حق کي بې اعتباره علمي او تاريخي مطالب لري او د تفرقې اچولو له پاره ليکل سوی دئ. په کلي توګه دا اثر بايد په احتياط و لوستل سي او هغو خبرو ته پام وسي، چي زموږ پر فرهنګ، تاريخ او ملت باندي ئې د بطلان کرښه راکش کړې ده.

زما تحلیل دا دئ:

د "افغان نامې" او پر هغه باندې کره کتنه که په غور ولوستل سي او محتوا ته ئې ځوک ښه ځیر سي دا کتاب په افغانستان کې د واقعیتونو د کږولو او اذهانو د اړولو له پاره کښل سوی او په ځانګړې توګه د ځینو مشخصو ډلو ټپلو او تنظیمونو له پاره د مانیفیست (Manifest) حیثیت لري. د دغه اثر په اشاره او ښوونه د پارسي ژبو هیوادونو د اتحاد کړۍ رامنځ ته کول، د افغانستان د تاریخ ډېره برخه په ایران پوري تړل، د غیرو پښتنو افغانانو له پاره لومړی پلا افغانستانۍ کلمه کارول، د ایران په تاریخ ویاړل او خپل افغاني تاریخ مصنوعي ګڼل، د اریاییتوب تر نامه لاندې د ایراني تعصب شیونیستي او فاشیستي لاس وهني ته زمینه مهیا کول، د کابل ښار د کوځو لوحې او د افغانستان پستې او نورو ادارو نوم پارسي ته د اړولو له پاره خلک هڅول، د پارسي فرهنګ خوني د ایران پېژندني تر نامه لاندې جوړول، د پښتو ژبې د ودې او پرمختګ مخه نیول، د افغانستان دولت او دربار دې ته اړایستل چې رنګه کړې پارسي مو خپله جوړوئ، دا قومانده ورکول چې د پارسي (دري) ژبې او ادبیاتو مشرتوب په لاس کې واخلئ موږ ستاسي مرستي ته درځکېږو، پښتو د یوې لهجې په توګه خپلو خلکو ته ورپېژندل، ټول ایراني نژادان چې افغانان هم پکښې راولي د ترکانو او عربو په وړاندې پاڅول، نړۍ وال ماخذونه او سرچینې د ایران په ګټه او د افغانستان په تاوان کږل یا تحریفول ... دا ټول هغه څه دي چې ځینو واکمنو ډلو ټپلو او تنظیمونو او معامله ګرو سیاسیونو ئې په پلې کېدو کې ډېري خولې توی کړي دي او اوس هم لګیا دي د دغه مانیفیست نوري برخي په نورو لاسو دلته په افغانستان کې تطبیق کړي.

د ۱۳۵۷کال د غوبي له اړو دوړ او د روسانو له تېري او د هغو له متعصب سیاسي چل او چم څخه رانیولې تر اوسه پوري زموږ علمي، فرهنګي او سیاسي حریم خوندي نه دئ او د ګاونډي هېوادو د تحریف سویو، غلطو او غیرواقعي کتابونو د راوړلو مخه نیول سوې نه ده او نه هم د رد له پاره داسي علمي بنسټونه او درنې ستې راپاته دي چې د هغو جواب وکاږي، دا ځکه چې هم ختیځ استعمار او هم لوېدیځ استعمار په موږ کې د بل وطنۍ، پردیپالني او له هېواده د تېښتي روحیه دوني پیاوړې کړې ده چې دا کړنه هیڅ پېغور نه راته ایسي.

راځئ! خپل ځوانان په خپلو واقعیتونو او د پردو په بدنیتیو خبر کړو، ښه به دا وي چې د عطایي صاحب دغه کره کتنه (نقد بر افغان نامه) یو پلا بیا په ډېر تېراژ چاپ سي او دغه متن پښتو ته واړول سي او پښتو متن ئې هم چاپ او هم ځوانانو او علمي – فرهنګي کړیو ته په پراخه کچه خپور سي.

والله المستعان

څېړندوی عبدالغفور لېوال / کابل

# د استاد عطايي يوه حماسي ډرامه

(د پيواړ حماسه) د اروانباد کانديد اکاډميسين محمد ابراهيم عطايي هغه ډرامه ده، چې د (کابل) مجلې د ۱۳۵۸ لمريز کال په پرله پسې ګڼو کې خپره شوې ده. دا ډرامه په پينځو پردو کې لوبول کېږي، چې په وار سره لومړۍ پرده درې، دوهمه او درېيمه دوې دوې، څلرمه درې او پينځمه هغه ئې يوه صحنه لري.

ډرامه د افغان ـ انګريز دوهمي جګړې په بهير کې په پيواړ کې د افغان مبارزينو د وطنپالي قربانۍ تمثيل دئ، چې د ننداري ليکني له لوازماتو سره سم په هنري بڼه کښل شوې ده. دا ډرامه ښيي، چې اروانباد استاد عطايي، د نورو توانمنديو تر څنګ د ډرامه ليکني په برخه کې هم يو پياوړی استعداد درلودلی دئ.

د پيواړ حماسې په ډرامه کې درې تخنيکي ځانګړنې د پام وړ دي:

۱. پرسوناژونه (کرکټرونه)
۲. د صحنو پسول يا ډيکورېشن او د پرسوناژونو د مکياژ لاربنود
۳. معياري ډيالوګونه

زموږ د دغې ډرامې پرسوناژونه؛ انګرېزي جنرالان، د منځني کچ پوځي منصبداران، سرتېري او بلخوا هغه افغان سپاهيان دي، چې په ظاهره خو له انګرېزي لښکر سره دنده لري، خو په پټه له هيواد، خاوري او خلکو څخه د ساتني په نيت د دوی په وړاندې د مبارزې هوډمن جنګيالي دي. صحنې د ازاد او غرني طبيعت په غېږ کې د پيواړ په کومه داسي هسکه څوکه کې پېښېږي، چې پکښې د انګرېزانو لښکر او قوماندانان د افغان اولسي مبارزينو له خوا کلابند شوي دي، انګرېزي جنرالان او مهم پوځيان له دې کلابندۍ څخه د تېښتې په هڅه کې دي. هاخوا د افغان سپاهيانو احساسات او مېړانه تمثيلېږي، چې غواړي د سر په قربانۍ د انګريزانو له پټو پلانونو څخه پرده پورته کړي او خپل هيوادوال مبارزين پرې خبر کړي.

ليکوال د ډرامې په سريزه کې ټينګار کوي، چې پېښه ربښتينې (حقيقي) ده او ان د ګڼو مهمو پرسوناژونو نومونه هم ربښتيني دي، استادعطايي ليکي: "د افغان او انګليس د دوهمي جګړې په دوران کې د جنرال رابرتس په قوا کې د پيواړ پر سر پېښه شوې ده. واقعه کاملاً حقيقي او د تاريخ ثبت هم ده. د اشخاصو نومونه، ټوله حقيقي نومونه دي، چې په تاريخ کې هم ثبت شوي دي".

لږ وروسته لیکوال د دې پېښې تاریخي حواله هم ورکوي، چې د قاضي عطاء الله خان (د پښتنو تاریخ) اثر ۳۴۲ او ۳۴۳ مخونه ښوول شوي دي.

د ډرامې د کیسې لنډیز:

د پیواړ کوتل د لوړو غرونو پر سر په عسکري کېمپ کي انګریزي مغرور جنرال (فریدریک رابرتس) له نورو دوو جنرالانو (کاب او تهیلوال) یوه کرنیل (باري ډریو) او مېجر (پالمر) سره پر دې خبري کوي، چې څنګه کولای شي، د افغان اولسي مبارزینو د کلابندۍ کړۍ ماته کړي او خپل لښکر ژوندي تر (شترګردن) پوري ورسولای شي.

جنرال رابرتس مغرور او کلانکاری مشر جنرال دئ، چې د انګرېزانو په سوبو، د ملکې په عظمت او د بریتانیاپه نه ماتېدونکي عظمت باور لري، څکه خو اوس غوسه دئ، چي د یوه وروسته پاته او بېوزلي اولس له لاسه ماتي ته نږدې دئ. جنرال کاب بیا یو واقعبین او هوښیار پوځي دئ، چي پښتانه پېژني او زور ئې ورمعلوم دئ. د دوی له دیالوګونو څخه سړی پوهېږي، چي انګرېزان هاغه مهال هند ته پر لاره له افغانانو څخه څومره په عذاب ول.

په هر صورت، انګرېزان پلان جوړوي، چي لښکر ته په پټه کوچ ورکړي او د یوه شپني یرغل په ترڅ کي ځانته لاره پرانیزي، له لاندي درو، څخه د غزا د ډول غږ راځي، چي ورسره یو یو د توپکو ډزونه هم اورېدل کېږي.

انګرېزي منصبداران له دې غږونو څخه کرکه او وېره لري او خپله دا حیرانتیا نه پټوي، چي له څرنګه یو عجیب او سرښندونکي اولس سره مخامخ دي. د انګریزانو لویه اندېښنه د هغو پښتنو سپاهیانو له اړخه ده، چي د دوی د لښکر یوه برخه جوړوي، خو تر دوی ډېر خپل هېواد ته وفاداره دي. بله خوا د افغان سپاهیانو تر منځ حضرت شاه او میرباز هغه دوه پښتانه سرتېري دي، چي غواړي د انګرېزانو پلان شنډ کړي او په یوه مناسب وخت کي په کوزو درو کي اولسي مبارزین د انګریزانو له پټ کوچ څخه خبر کړي. دوی د کوچ په حساسه شېبه کي د خبرداری ډزي کوي او اولسي جنګیالي پر انګرېزانو ورتوېږي. وروستۍ صحنه د همدغو افغان مبارزینو په محاکمه او د حضرت شاه په اعدامولو پای ته رسېږي.

د ډرامې عمومي پیغام د هېواد د خپلواکۍ له پاره د افغان سرتېریو د سرښندني تمثیل دئ، خو د دې تر څنګ یو شمېر نور ي محتوایي ځانګړني ئې هم د پام وړ دي: د ببلګي په توګه؛ لوستونکی او یا هم د بریالي تمثیل په صورت کي لیدونکي دا موندلای شي، چي انګرېزي پوځیانو د خپلو ښکېل کړیو اولسونو په اړه کوم تصورات درلودل، له دوی سره ئې څه ډول چلند درلوده، افغانانو څه ډول مبارزه کوله، د ځینو سردارانو او اجیرو افغان مشرانو ذلت او وطنپلورني ته ئې په کومه سترګه کتل. همدا ډرامه یو ځل بیا د افغاني تاریخ یوه ترخه تراژیدي زموږ مخي ته دروي او هغه دا چي اولس په کومو سترو سرښندنو د خپلواکۍ له پاره هڅي کولې، خو د سیاست، پوهي، ملي تفکر او یوې پیاوړي ملي واحدي رهبرۍ ځای تش وو. د همدې ډرامې دیالوګونه یو ځل بیا راته وایي، چي موږ

هر هغه ارزښت او بریا چي اولس راته د مبارزې په ډګر کي ګټلې، ډېر ژر مو د تعقل او سیاست په میدان کي بایللې ده. په دې ډرامه کي انګرېز جنرال په دې باور دئ، چي که څه هم عادي افغانان د دوی پر ضد جنګېږي او د علیا حضرتي ملکې نړۍ وال پوځ ته ئې د سر په کاسه کي اوبه ورکړي دي، خو دی د دې قوم کمزوري پېژني، بس تش په نامه مشرانو ته ئې د پیسو او منصب وړاندیز وکړه، ټول قوم در تسلیموي. بله دا چي دوی ازادي ګټلای شي، خو ساتلای ئې نه شي، ځکه وړي، محروم او له هوښیارې مشرۍ څخه بې برخي دي.

په ډرامه کي د کرکټرونو څېرې او رواني حالتونه، کرکه، هیجان، تقابل، اضطراب، کینه او سپېڅلې وطنپالنه لوبوي. هڅه شوې ده، ډیالوګونه تر هغي اندازې اوږده نه شي، چي یو ډرامه لوبغاړی ئې په یوه عادي حالت کي و نه شي ویلای، کلمات د کرکټر له شخصیتي ځانګړني سره سم ټاکل شوي دي، د یوه انګرېزي جنرال جملې د یوه نالوستي پښتون سپاهي له وینا سره توپیر لري.

په ډرامه کي ځیني په زړه پوري هنري سېمبولونه کارول شوي دي، د غزا ډول، د توپکو داسي ډزي چي د یوه منظم اردو ښکارندویې نه، بلکي د چریکي جنګیالیو د پوځي خوځښتونو نښه څرګندوي. څو هغه منظومي ترانې، چي کېدای شي د تمثیل پر مهال د تیاتر د کورس له خوا د صحنې تر شا وویل شي.

کله چي پر انګرېزي جنرالانو د افغاني مبارزینو د ډول غږ بد لګېږي، نو جنرال کاب وایي: "دا د ډول اواز پر ما ډېر بد لګېږي، اعصاب مې راخرابوي، باور وکړئ، چي په غوږونو کي مي د توپ مرمۍ وچوي اضافه به مي اذیت نه کړي، لکه د دغه لعنتي ډول اواز..."

استاد عطایي څو لسیزې پخوا لا په خپلي دې ډرامې کي د موډرني ډرامه لیکني ګڼي هنري ځانګړني، تر خپلو همزولو ډرامه لیکونکیو په څه نا څه متفاوته او ممتازه بڼه، ځای کړي دي. له دې څخه ښکاري، چي اروانښاد استاد عطایي د ډرامه لیکني بشپړ هنري مهارت درلوده، ځکه زموږ دغه استاد په خپله د تیاتر د هنر په اړه یوه رساله هم لري، چې (ډراماتیک ادب او هنر) نومېږي. خو له همدې دومره توانمندۍ سره سره له ده څخه ګڼي ډرامې نه دي راپاته. چي رالنډه ئې کړم؛ استاد عطایي (د پیواړ حماسه) له ډرامې څخه پر موږ غږ کوي، چي: نیکونو د ازادۍ ګټلو له پاره سرونه وښندل، خو موږ خپلواکي و نه شوه ساتلای، ځکه موږ ګومان وکړ، چي خپلواکي یوازي په تورو او توپکونو ساتل کېږي، حال دا چي نن خپلواکي په یووالي، هوښیارۍ، پوهه، اقتصادي پرمختګ او پر ځان بسیاینه ساتل کېږي.

هرګوره، که استاد عطایي ژوندی وای، نو څومره به خواشینی وای چي د پیواړ د حماسې تر زمانې لسیزي لسیزي را په دېخوا لا هم موږ د ازادۍ په نامه وژل کیږو، خو لا هم خپلواک نه یو. زه باور لرم، چي که استاد عطایي ژوندی وای، نو زموږ نسل نه به ئې پوښتلي وای:

ولي؟ او له نورو اولسونو څخه زموږ توپیر څه دئ، چي نور یو ځل خپلواکي اخلي او ساتي ئې، خو موږ څو څو ځله په همدې نامه ووژل شوو، خو و مو نه شوای ساتلای؟ زموږ د دغه هنرمن استاد اروا دي ښاده وي.

لیکنه: نثار احمد آریا

# "د اسیا په زړه کې توپان" فني شننه

"د اسیا په زړه کې توپان" د ارواښاد محمد ابراهیم عطایي تاریخي ناول دئ. دغه اثر په لومړي پلا د کابل د علومو اکاډیمۍ له خوا په ۱۳۵۹ کال خپور سوی دئ. د اثر محتوا د افغان- انګلیس د دوهم جنګ جریان او پېښې دي. د دغه اثر پر فني، هنري او ځینو نورو اړخونو باندې ځیني څېړونکي او کره کتونکي رغېدلي دي. د دې کسانو له جملې څخه یو هم ځوان څېړونکی ځوانیمرګ عبدالقدیم پتیال دئ. نوموړي پر یاد سوي ناول باندې د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست د دوې میاشتنۍ مجلې د ۱۳۸۵ ل کال د تلې او لړم میاشتو په ګڼه کې د "ارواښاد عطایي او د آسیا په زړه کې طوفان" تر سرلیک لاندې یوه لنډه لیکنه خپره کړې ده. په دې لیکنه کې ځوانیمرګ پتیال د ارواښاد عطایي د یاد سوي اثر پر ځینو نورو اړخونو سربېره د دغه ناول فني اړخ ته هم لنډه کتنه کړې ده. زه (آریا) هڅه کوم، چې په دې لیکنه کې د ځوانیمرګ پتیال پر دې لیکنه سربېره د دغه ناول پر ځینو نورو فني او هنري اړخونو ورغږېږم.

ارواښاد پتیال د خپلې لیکنې په یوه برخه کې د دغه ناول د فني اړخ په اړه داسې کښلي دي: "زما له پورتنیو یادونو څخه به څه ناڅه فهمول سوي وي، چې دغه اثر د لنډې کیسې یا لنډ داستان او یا ناول پر اصولو او معیار برابر نه دئ لیکل سوی او یا په بله توګه د دغه اثر داستانونو ته مور بشپړ لنډ داستان یا ناول نه سو ویلای، ځکه کومې غوښتنې چې زمور څخه ئې اوسنۍ لنډه کیسه یا ناول غواړي، هغو ته دلته بشپړ جواب نه دئ ویل سوی. په داستان کې د عمومي تلوسې خیال نه دئ ساتل سوی..." د ارواښاد پتیال د لیکنې له پورتنې اقتباس څخه څرګندیږي، چې نوموړی دغه اثر نه د لنډې کیسې او نه هم د ناول په ژانري کټګورۍ کې راولي. دی د خپلې دې خبرې د اثبات له پاره د ناول پر ځینو فني اړخونو رغږېږي او په دې برخه کې لومړۍ یادونه د تلوسې (Suspense) کوي، چې یاد سوی اثر تلوسه نه لري. بې له شکه

چي تلوسه د داستاني ادبي ژانرونو په ځانګړي ډول لنډي کیسې، ناول، رومان او ډرامې نه بېلېدونکی او مهم جُز دئ، البته داچي په یوه داستاني اثر کي باید څونده تلوسه وي، تر څو هغه اثر د داستاني ادبیاتو د پورتنیو ژانرونو په ډله کي ونیول سي او یا و ایستل سي، دا معیار نا څرګند دئ. د دې معیار د ناڅرګندتیا له امله ښایي ګرانه وي، چي کره کتونکی په یو داستاني اثر کي د تلوسې د لړوالي له امله هغه اثر د لنډي کیسې، ناول، رومان او ډرامې له ژانري چوکاټه وباسي.

په داستاني آثارو کي تلوسه له غوټي او ټکر څخه زېږي. "د اسیا په زړه کي توپان" اثر که څوک له فني اړخه مطالعه کړي، نو ورته څرګنده به سي، چي د ناول په درېیم مخ کي د روسي جنرال دا مکالمه "یقیناً چي د دې ولیعهد مرګ به زموږ او بریتانیا تر منځ د لویو لانجو باعث سي" د غوټي بنسټ ږدي او تلوسه زېږوي. وروسته د انګرېز استعمار ګر ځواک په وړاندي د افغانانو ملي مبارزه دغه غوټه لا پسي ټینګوي او د یو لوی ټکر سبب کېږي. لنډه داچي په ناول کي د غوټي او ټکر سیستماټیک پرمختګ د تلوسې لامل ګرځي او دغه ناول له یوې مناسبي تلوسې څخه برخمن کوي.

د لیکني په پورتنۍ برخه کي په لنډ ډول پر دې وږغېدو، چي "د اسیا په زړه کي توپان" د مناسبي تلوسې څخه برخمن اثر دئ او په ناول کي په دغه اندازه د تلوسې موجودیت د ناول په نیمګړتیاوو کي نه سو ګڼلای، ځکه موږ په نړیواله کچه داسي ناولونه لرو، چي د تلوسې په لحاظ تر دې اثر ډېر کمزوري دي. د نجیب محفوظ ناول (د نیل د رود پر غاړه)، د اناطول فرانس ناول (تائیس) او ډېر نور نړیوال آثار داسي سته، چي د تلوسې له پلوه ډېر کمزوري دي، خو بیا هم په نړۍ والو ادبیاتو کي مهم ځای لري.

همدارنګه ځوانیمرګ پتیال د خپلي لیکني په یوه بله برخه کي د مرحوم عطایي د ناول په اړه داسي لیکي: "...د داستان کرکټر (Cherector) په سمه توګه نه دئ انځور سوی او یوازي لیکوال په مسلسلوپېښو پسي هڅه کړې ده. د یوه داستان پای او د بل پیل، د موضوع له اړخه سره تړلي او ارتباط لري او له همدې وجې د داستانونو پیل او پای حیرانوونکی او یا له تلوسې ډک نه برېښي، ځکه نو دلته دغه اثر ته ځیني کسان ناول (Novel) هم وایي، خو زما په ګومان که د لنډي کیسې یا ناول پر ځای د دغه کتاب متن او لیکني ته داستاني نثر وویل سي، پر ځای خبره به وي."

د ځوانیمرګ پتیال د لیکني په پورتني پراګراف کي څو ټکو ته اشاره سوې ده. لومړۍ یادونه د داستان د کرکټر په اړه ده، چي د دې داستان کرکټر په سمه توګه انځور سوی نه دئ. زما په فکر دلته له دې خبري څخه د لیکوال هدف دا دئ، چي دغه ناول یو مرکزي کرکټر یا اتل نه لري. د ځوانیمرګ پتیال دا خبره سمه ده، خو موږ د جوړښت له مخي دوه ډوله ناولونه لرو، یو ئې کرداري ناول دئ او بل واقعاتي ناول. د کرداري ناول پلاټ تر ډېره بریده د مرکزي کرکټر پر کړونو ولاړ وي. د دا ډول ناولونو پلاټ نسبتاً واقعاتي ناول ته

غښتلی وي. په واقعاتي ناول کي بیا مرکزي کرکټر یا اتل ډېر برجسته او څرګند نه وي، همدا لامل دئ، چي د دا ډول ناولونو پلاټ د پېښنو پر تړاو ولاړ وي، یعني د دغه ډول ناولونو د پلاټ غښتلتیا او کمزوري د ناول د پېښنو په ارتباط او تړاو پوري اړه لري. که په واقعاتي ناول کي د پېښنو تړاو او اوبدلو ته ډېره پاملرنه ونه سي، نو د ناول پلاټ به سست او کمزوری وي. (د اسیا په زړه کي توپان) د جوړښت له مخي واقعاتي ناول دئ. د دغه ناول د پېښنو تړاو او ارتباط که څوک په نظر کي ونیسي، نو د پلاټ له مخي په مناسبو ناولونو کي شمېرل کېدای سي.

څوانیمرګ پتیال د خپلي لیکنې په یوه بله برخه کي پورتنۍ خبره په یو څه توپیر سره په دې ډول کوي،"...په دغه اثر کي یوه پېښه تر پایه نه ده غځېدلې او په همدې دلیل ناول نه ورته ویل کېږي، مثلاً د کتاب مرکزي کرکټرونه نه دي معلوم، د کابل د جګړو احوال بیان سوی دئ، د پیواړ حماسه لیکل کېږي، د کندهار د جنګ خبري کېږي او د افغاني مېړنیو یادونه کېږي. همدغه راز د کابل د سردارانو او درباریانو حالات په ډېر ښکلي داستاني انداز بیانیږي، خو تر پایه یو یا دوه یا څو کرکټرونه نه پالل کېږي، چي کیسه له سره تر پایه څوک ورسره واخلي..." زه فکر نه کوم، چي په ناول کي دي د یوې پېښې غځول شرط وي، البته د موضوع د یوالي شرط لا ښایي ولري، چي په دغه ناول کي په بشپړه ډول پالل سوی دئ، ځکه د ناول موضوع ټوله د افغان– انګلیس د دوهم جنګ پر پېښنو راڅرخي.

د ناول د فن بل مهم اړخ ژبه او د بیان اسلوب دئ. د مرحوم عطایي ناول "د اسیا په زړه کي توپان" د ژبي او اسلوب له پلوه خورا غني اثر دئ. د دغه ناول ژبه نه یوازي دا چي روانه او ساده ده، بلکي د منظر کشۍ په برخه کي ډېر داسي تصویرونه لري، چي د پښتو ژبي په نورو تاریخي ناولونو کي ئې بېلګي نسته او یا ډېري لږ دي. د نوموړي ناول د تصویري ژبي یوه نمونه په دې ډول ده، "... د کابل د بالاحصار په خاص حرمسرای کي پر ټاکلو ځایونو د پیره دارانو څراغان ځړېدل او کله، کله چي به ئې مخ ته پیره دار تېر سو، نو اوږد سیوری به ئې د حرمسرای پر غولي ولوېد او تر اصلي پیره دارانو دغه اوږدو متحرکو سیورو د سړي پاملرنه ډېره جلبوله..." په دې کوچنۍ منظر کشي کي د ژبي د هنر لوی قوت پروت دئ. کله چي لوستونکی دا جملې لولي، نو په ذهن کي ئې د توري شپې تصویر جوړیږي. د پیره دارانو متحرک سیوري دغه تصویر ته ساه ورکوي او ژوندی کوي ئې. کله چي لوستونکی دغه جملې لولي، نو ذهناً ځان په بشپړه ډول د ناول په صحنه کي احساسوي او همدا د داستان لیکوال د هنر کمال دئ. داچي زموږ په پخوانیو او حتیٰ اوسنیو ناولونو کي دونده ژوره جُزیات نګاري ډېره کمه لیدل کېږي، نو له دې امله دغه ناول د ژبي او اسلوب له پلوه د پښتو ژبي په ډېرو ښو ناولونو کي ګڼلای سو.

د اروابناد عطایي ناول مناسبه برخه مکالمه هم لري. مکالمه د ناول د موضوع په

پرمختګ، د پېښو په روښانولو او د کرکټرونو په اجتماعي او نفسياتي پېژندنه کي مهم رول لري. اروابښاد عطايي د خپل ناول له مکالمې څخه د پورتنيو موخو له پاره په ځينو ځايونو کي مناسبه استفاده کړې ده، خو په ځينو ځايونو کي بيا ډېر بريالی نه دئ. د بېلګي په ډول که څوک د ناول د مکالمې لومړۍ دوې موخي يعني د موضوع پرمختګ او د پېښو روښانول په پام کي ونيسي، نو ده په خپل ناول کي نه يوازي داچي له مکالمې څخه د موضوع د پرمختګ او د پېښو د روښانتيا له پاره کار اخيستی دئ، بلکي د ناول پېښو ته ئې د مکالمې په واسطه ښه ډراماتيکه بڼه ورکړې ده او په دې ډول ئې ربښتيني تاريخي پېښې له تلوسې او داستاني هنريت څخه برخمني کړي دي. دغه ټکي ته په پام سره څوک ويلای سي، چي اروابښاد عطايي په خپل ناول کي له مکالمې څخه د ناول د مکالمې د لومړيو دوو موخو له پاره ډېره ښه استفاده کړې ده، خو د پاته دوو نورو موخو په برخه کي دغه استفاده ډېره څرګنده نه ده، ځکه د ناول په بېلابېلو برخو کي د عادي پښتني کرکټرونو او باسوادو کرکټرونو تر منځ د مکالمې د ژبې توپير نه کېږي. د بېلګي په ډول د ناول په يوه برخه کي د يو عادي پښتون عسکر له خولې داسي ويل کېږي: "- ياره حضرت شاه زه فکر کوم، چي هغه به غافل نه شي او د فرنګي په دغه چل به تېر نه وځي او استراحت به ونه کړي". زما په فکر د يو عادي پښتون له خولې په دغه ژبه او دغه الفاظو او عبارتونو د مکالمې را ايستل ډېره مناسبه نه ده، ځکه په دې لنډه مکالمه کي (زه فکر کوم)، (هغه به غافل نه سي) او (استراحت به ونه کړي) داسي او عبارتونه دي، چي ښايي د يو عادي پښتون له خولې ئې د راوتلو تمه ونه کړو. په دغه مکالمه کي که د (زه فکر کوم)، (هغه به غافل نه سي) او (استراحت به ونه کړي) پر ځای په ترتيب سره (زما په خيال)، (هغه به خطا نه وزي) او (بيده به نه سي) عبارتونه راوړل سي او مکالمه په دې ډول ليکل سوې وای، نو ښه به وای، چي -ياره حضرت شاه زما په خيال چي هغه به خطا نه وزي او د پرنګي په دغه چل به تېر نه وځي او بيده به نه سي. د ناول دغه لنډه مکالمه او دې ته ورته نوري ډېري مکالمې داسي دي، چي له لوستونکي سره د کرکټرونو په اجتماعي پېژندنه کي ډېره مرسته نه کوي، يعني کله چي لوستونکی دغه مکالمې لولي نه په دې نه پوهېږي، چي د دغه ډايلوګ څښتن د اجتماعي پلوه د کومي طبقې سړی دئ.

د داستاني آثارو د مکالمې بله موخه د کرکټرونو نفسياتي معرفي ده، يعني کله چي لوستونکی د يو داستاني اثر مکالمه لولي، نو دغه مکالمه بايد لوستونکي ته د کرکټر نفسياتي حالت څرګند کړي. اروابښاد عطايي د خپل ناول له مکالمې څخه د دې موخي له پاره هم څه ناڅه کار اخيستی دئ، ځکه په دغه ناول کي ځيني داسي مکالمې سته، چي لوستونکو ته د کرکټرونو د نفسياتي حالت په څرګندولو کي مرسته کوي. د دغه ډول مکالمې يوه بېلګه د ناول په دې برخه کي لولو: "جنرال رابرټس په قهر د دوسيې څخه يو

کاغذ راواخیست او حاضرینو ته یې ونیو او وېې ویل:

–دا کاغذ وینئ؟

–دا کاغذ نه دئ. دا د لويي بریتانیا علیه حضرتي ملکې ستري ویکټوریا ته زموږ د تعهد پاڼه ده.

– دا په اسیا کي زموږ د عزت او شرف د ازمویني پاڼه ده...".

په پورتنۍ مکالمه کي چي کله د ناول کرکټر (دا کاغذ وینئ؟)او یا دا چي (دا کاغذ نه دئ...) جملې وایي، نو لوستونکی پوهېږي، چي د مکالمې ویونکی په عامه لهجه، نه بلکي په جدي لهجه خبري کوي. کله چي یوه مکالمه لوستونکي ته د کرکټر د خوښۍ، غم، درد، قهر او یا کوم بل حالت احساس ورکړي، نو لیکوال په دې کي بریالی سوی، چي د خپل اثر له مکالمې څخه د مکالمې د یوې خاصي موخي له پاره استفاده وکړي. که کره کتونکي د اروابناد عطایي د ناول مکالمه په غور وګوري، نو ورته څرګنده به سي، چي نوموړي د خپل اثر له مکالمې څخه د پورتنۍ موخي له پاره څه نا څه مناسبه ګټه پورته کړې ده.

د داستاني آثارو د مکالمې یوه بله ښېګڼه دا ګڼل کېږي، چي لوستونکي ته د اثر د کرکټرونو په جغرافیایي پېژندنه کي مرسته وکړي، یعني کله چي یو لوستونکی د اثر د یو کرکټر مکالمه لولي، نو دغه مکالمه باید له لوستونکي سره څه نا څه په دې کي مرسته وکړي، چي د مکالمې ویونکی د کومي جغرافیې اوسېدونکی دئ. (د اسیا په زړه کي توپان) ناول کرکټرونه د بېلابېلو پښتني سیمو څخه دئ، خو د دغه ناول د ډېرو کرکټرونو ژبه او لهجه یوه ده. که چیري اروابناد عطایي د خپل ناول د کرکټرونو ژبې او لهجې ته تغیر ورکړی وای او د بېلابېلو پښتني سیمو کرکټرونه لکه افریدي، وردګ، کابلیان، کندهاریان او نور ئې په خپلو لهجو رغولي وای، نو د ناول او د ناول د ژبې هنریت به ئې لا ډېر سوی وای. البته دلته دا یادونه هم اړینه ده، چي په دغه ناول کي د دربار د غړو تر منځ د هغه وخت د دربار رسمي او تشریفاتي ژبه په ډېر هنر او کمال سره کارول سوې او دغه کار د ناول هنریت لا څواکمن کړی دئ.

د اروابناد عطایي د ناول پر کرکټرونو، ژبه، جوړښت او نورو فني اړخونو باندي ډېري نوري خبري هم کېدلای سي، خو داچي په سیمینارونو کي د ګډونوالو له خوا د اوږدو مقالو د اورېدلو حوصله ډېره نه وي، نو زه خپله دغه مقاله پر همدې ځای پای ته رسوم.

پای

۴ـ ۵ـ ۱۳۹۴

ټولوونکی: رزمي

## ګل خبري

- قدرت باید تل تر ځارني لاندي ونیول سي، هغه قدرت چي په پټه او په تېره بیا د ملي امنیت په پلمه چلول کېږي دوه برابره خطرناک دئ.
- په عصري ټولنه کي د هغو خلکو څخه وتښته چي هیڅ شي ته عقیده نه لري.
- که ته د خلکو په باب تبصرې کوې نو د هغوی د دوستۍ چانس د لاسه ورکوې.

محمدیار یار / کابل

# له کاندید اکاډمیسین عطایي څخه د زدکړي یو مهم ټکی

هسي خو له مرحوم کاندید اکاډمیسین محمدابراهیم عطایي څخه د تاریخ، ادب و ادبپوهني، فولکلورپوهني و څېړني، اتنوګرافۍ، انتروپالوژۍ او کلتورپوهني پر ډګر د یوه دقیق محقق او تخلیقکار په توګه ډېر څه د زدکړې وړ دي او زموږ خوان نسل یې د لارې په تعقیب سره ځان لوړو علمي مدارجو ته رسولای سي خو زما په نظر هغه تر ټولو مهم ټکی، چي باید د دغه تکړه عالم له تحقیقي روشه ئې راوباسو او د خپل نوي، په تېره بیا پوهنتوني و اکاډمیک نسل، جدي توجه ورته راواړوو هغه د مسایلو او پدېدو د ماهیت د کشف او پېژندلو له پاره د ده تحلیلي چلن دئ او دا هغه جالب اکاډمیک کار دئ چي په تر سره کولو کي ئې د مرحوم عطایي شعور لوړ او فکر ژور دئ.

تاسي کولای سئ چي زما د دغي ادعا ثبوت د هغه په دوو په زړه پورو آثارو (ملي هینداره د اجتماعي څېړنو له نظره او د پښتوپر شفاهي داستان یوه تحلیلي څېړنه) کي په روښانه توګه مشاهده کړی.

د دغو دوو آثارو اهمیت د افغانستان د یوازني راپاته لوی محقق محترم زلمي هیوادمل له هغو څو خبرو څخه مالوملای سو چي (د پښتوپر شفاهي داستان یوه تحلیلي څېړنه) باندي ئې کړي دي، هلته چي لیکي:

"حاضر کتاب یو داسي اثر دئ چي سړی د معاصر تحقیق، علمي تحلیل او ورسره تخلیق درې واړه څرکونه پکي ایستلای شي.

د دغه کتاب یو عمده ارزښت دا دئ چي دا کتاب په عمومي ډول لوستونکو ته د پښتني نکلونو اصلي ماهیت او جوهر ورښیي او دا ور په یادوي چي زموږ په اولس کي خواره واره نکلونه تش د وخت تېرولو او یا د ژمي د شپو د لنډولو وسیله نه ده بلکي دا نکلونه یو لړ ممیزات لري چي د پښتنو د اجتماعي ساختار په څېړنه کي د هېرېدو نه دي او بایده دئ چي زموږ محققین او نور ورته متوجه وي.

د دغه اثر فاضل لیکوال کاندید اکاډمیسین محمدابراهیم عطایي زموږ په معاصرو فرهنګیانو کي یوازینی سړی دئ چي د پښتني نکلونو د اجتماعي، هنري او کلتوري ارزښتونو په څرګندولو کي ئې علمي کار کړی دئ.

د ملي هینداري د درېیم ټوک اوږده تحقیقي- تحلیلي مقدمه (ملي هینداره د

اجتماعي څېړنو له نظره) او د حاضر کتاب درېیم فصل د ده د دې لړۍ ډېر عمده کارونه دي چې زما د مطالعې له مخې ئې بل ساری زموږ په څېړنو کي نشته. (مخونه، د-و)".

که څه هم له فولکلوري موادو څخه د جالبو کلتوري، ټولنیزو او رواني نتایجو په را ایستلو کي د اروابناد کاندید اکاډمیسین محمد انور نومیالي څېړني هم هېښوونکي دي او د ښاد روان کاندید اکاډمیسین محمدصدیق روهي تیوریک او تحقیقي کار هم له نوښته ډک معاصر علمي بنیادونه لري او د خدای بخښلي دوست شینواري تحقیقات هم خپل خوږوالی و جذابیت لري مگر د ښاغلي عطایي ژور کار بېساري دئ؛ نوموړی له یوې خوا پښتو فولکلور د نړۍ د مهمو هیوادو له مشهورو فولکلوریکو اثارو لکه په یونان کي د هومر له ایلیاد و اوډیسې، د جرمني له گریم، د هند له رامایِن او مهابهارت، روسیې، بلغاریا او نورو سیمو له فولکلور، همدارنگه د فردوسي له شهنامي سره پرتله کړی او عجب مشترکات ئې پکښي کشف کړي، له بله اړخه ئې خپله پښتو فولکلور او په هغه کي هم شفاهي داستان ژور څېړلی او زموږ د پرونیو کلتوري، اجتماعي، اقتصادي او ارواپي روابطو جوله ئې را ښکاره کړې، د استاد محمد معصوم هوتک خبره «په پښتني افسانو کي د ټولنیزو او تاریخي فوسیلونو پر کشف هم بریالی سوی دئ» (کندهار مجله، ۱۳۸۵، تله-لړم).

ښایي زموږ له ننني پوهنتوني او اکاډمیک قشر سره زموږ د پرونۍ ټولنیزي څېړې د پېژندني د اهمیت په باب څه سوال پیدا سي چي موږ له بده مرغه له دغه ډول تحلیلونو او کشفیاتو سره نه یوازي نا اشنا بلکي په ډېرو واردو کي ئې پر ضد هم یو او دا هم له دې امله ده چي زموږ په تحقیقاتي او تحصیلي مؤسساتو کي په آزاد او پرانیستي ذهن د علمي او بې طرفانه تحلیلونو او د فکر د تولید فرهنگ وجود نه لري نو په دې خاطر څوک آن دا هڅه لا هم نه کوي چي لږ تر لږه د فکري تولید په مفهوم سر خلاص کاندي.

د دغسې فولکلوریکو څېړنو او په پایله کي ئې زموږ د پرونۍ کلتوري څېرې پېژندني د اهمیت په باب خپله عطایي صاحب کاږي چي:

"په (کلتوري انسان پېژندني- کلچرل انتروپالوجي) کي (فولکلور) بیا د اجتماعي ژوندانه څرنگوالی او مظاهر په موږ پېژني، د انسان پوهني په لار کي دا یو مبرم احتیاج دئ چي موږ د خپلي یا بلي ټولني حالات په قدیمه نړۍ کي معلوم کړو.

د داسي پوهني ارزښت نو دا دئ چي موږ د هغې تېري ټولني د افرادو د افکارو، معتقداتو، امیالو او غوښتنو څخه د دوی د اجتماعي تاریخ مبادي معلوم کړو او د هغو سره د ننني ټولني جریانات مقایسه کړو او دا لار نو هغه وخت موږ په بریالیتوب تر پایه رسولای سو چي د ټاکلي ټولني په (فولکلور) کي څېړنه وکړو". (د پښتو پر شفاهي داستان یوه تحلیلي څېړنه، مخ ۵۳)

مگر بیا مي هم باور نه سي چي زموږ ننني تحصیلي و څېړنیز نسل دي د یوې یا څو مقالو په زور او یا هم د شخصي مطالعاتو او تشبث پر اساس له حاکم منحط او وراسته نصاب و سیستم له ناوړو تاثیراتو څخه داسي په یوه اسانه وژغورل سي څکه یوه ذهن چي د خپل ټول تعلیمي و تحصیلي ژوند په جریان کي د یوه مزخرف او بې معیاره سیستم په بټۍ کي مسلسل جوش

خوړلې وي او په زړو و له کاره لوېدلو میتودونو سره یوه ککړی. د غیر علمي چپټرو او لکچرو په کثافت دانۍ بدله سوې وي، پر هغو به د ماوارو بېچارګانو سرنا څه اغېز ولري؟ خو موږ مجبور او مسئول یو چي د خپل مسئولیت ادایني له پاره خپل پیام بیا–بیا وړاندي کړو.

ښایي د دغسې زړه خوړونکي تحقیقي وضعیت له پاره موجود ښوونیز و علمي پرسونل څکه ډېر ملامت نه کړای سو چي موږ څه کم څلور لسیزي د جهنمي جنګ په اور کي سوځو او لا هم دا جګړه نه یوازي ختمه نه ده چي لا ئې نوي، نرۍ وال او لا ګوابنده اړخونه پیدا کړي دي مګر دا باور باید هیڅکله و نه بایلو چي دا خو انسان دئ چي هر څه ته تغیر ورکوي، موږ نه سو کولای چي د مسلسلو غمیزو له امله لاس تر زنه کښېنو، زموږ ځوان پوهنتوني و اکاډمیک کدرونه باید زموږ د زمانې په رمز و راز ځانونه پوه کړي، علمي معبرونه پیدا کاندي او د نوو تعلیمي و تحصیلي میتودونو په زدکړه و تطبیق سره زموږ ګران هیواد له اوسني مبتذل ذهني–فکري سقوط څخه وژغوري.

کله چي زه د نوي زمانې په خوی و بوی د پوهېدو خبره کوم او بیا له رخصت سوي نسل څخه د زدکړي مهم ټکي تبلیغوم ممکن یو – نیم حساس کس راته ووایي چي ښوونه د نوي زمانې کوې او لارښوونه د تېر وخت؟

دا اجتماعي اعتراض وارد دئ خو موږ د مسلسلو فاجعو له لاسه د بدمرغۍ هغې کندي ته لوېدلي یو چي هغه شاوخوا څلوېښت کاله مخکي علمي– و ښوونیز سټنډرډ مو هم له لاسه ورکړی دئ؛ تاسو فکر وکړئ! که د نمونې له پاره یوازي کابل پوهنتون وټاکو نو د دغه تحصیلي مؤسسې څلوېښت– پنځوس کاله مخکي اعتبار و معیار له نننی هغه سره په هیڅ وجه د پرتلې وړ نه دئ، هسې که ئې د علمي پروژو، تحقیقاتو، فکري محصولاتو، کتابو، ژورنالو او تدریسي میتودو مثالونه ورکوو، هر ګوره خبره تر مقالې اوړي خو که ئې یوازي د پښتو برخي استادان یاد کړو نو نن ورځ، پرته له استاد زلمي هیوادمل څخه، نور نو د لوی استاد پوهاند عبدالحي حبیبي، پوهاند صدیق الله رښتین، استادګل پاچا الفت، استاد عبدالرؤف بېنوا، پوهاند دوکتور اکاډمیسین محمد رحیم الهام، پوهاند اکاډمیسین عبدالشکور رشاد، پوهاند دوکتور بهاؤالدین مجروح، اکاډمیسین روهي او لسګونو نور نخبه استادانو په سویه، چي دوی بیا هر یوه لسګونه نور استادان د پوهاندۍ او دوکتوراوو ترکچي وروزل، یو استاد هم نه سو لیدلای چي یا دي هغسي علمي صلاحیت ولري یا هم هغسي د وطندوستۍ او فرهنګپالنې ملي احساس.

تېک په همدې ډول د افغانستان د علومو اکاډمي هم در واخلئ؛ څکه نو هغه دوره راته یوه طلایي خاطره ایسي، ارمان پسي کوو او دې ته زړه خورو چي ولي بیا هغسي یو رنګین علمي خوب نه سو لیدلای.

هیله مو دا ده چي د لوړو تحصیلاتو او معارف په مؤسساتو کي مو اساسي تغییر راسي او ښوونکي و استادان مو د کاندید اکاډمیسین عطایي غوندي تللیو هیومانیستو، وطنپرستو، علم و فرهنګ ته متعهدو عالمانو، لیکوالو او استادانو د احساس او علمي شهکاریو په پېژندنه او زدکړه سره نوو علمي پرمختیاوو او بریاوو ته ویاړلي لاري پرانیزي.

پای

مطیع الله روهیال

# استاد عطایي او د ادبي آثارو کره کتنه

**لومړۍ خبره:**

پر ادبي آثارو باندي د کره کتني د مطالعې په لړ کي څو واره د دغي مقولې سره مخامخ سوی یم چي وایي: "د افکارو له تصادم څخه د حقیقت بریښنا رامنځته کېږي". د دغي مقولې اساسي خبره په دې کي ده چي د مسائلو عمق او د حقیقت تل ته به له کومو لارو رسېږو، تر څو د واقعیتونو په تر لاسه کولو سره په انساني ټولنه کي د افرادو تر منځ پر بېلابېلو موضوعاتو تفاهم او د نظر یووالی رامنځته سي. څنگه چي انسانان یو د بل په مقابل کي په ظاهري او فزیکي جوړښت کي توپیر لري، په همدغه شکل ئې فکري و ذهني ساختمان هم متغایر دئ. د دغه فکري توپیر له اسیته یوه موضوع له بېلابېلو زاویو او فکري تگلورو څخه شاربل کېږي، تر څو د حقیقت روښنایي تر لاسه سي.

د کره کتني عامه موضوع او د ادبي آثارو کره کتنه په ځانگړې توگه د دغسي سالمو فکري او ذهني ټکرونو نتیجه ده، تر څو موږ وکولای سو د یوه اثر ښېگڼي و بدگڼي په داسي ترازو وتلو چي نتیجه ئې لوستونکی واقعي لاري ته سیخ کړي.

**اصلي خبره:**

اروابناد کاندید اکاډمیسین محمد ابراهیم عطایي یو له هغو لیکوالو او محققینو څخه وو، چي د افغاني فرهنگ د بېلابېلو خواوو پر رنگارنگي ئې قلم چلولی دئ. استاد عطایي که له یوې خوا یو پرکاره ژورنالیست وو، تر څنگ ئې د اتنوگرافۍ په باب هم پلټني او تحقیقات کړي دي. د فولکلور پوهني په باب د اروابناد عطایي کارونه اساسي او بنیادي ارزښت لري، او د افغانستان د معاصر تاریخ په باب د هغوی پلټني او تحقیقات زموږ د هیواد په تاریخ لیکنه کي نه یوازي د موضوعاتو د استناد او کره والي له مخي بلکي د تاریخ لیکني د میتودلوژۍ له اسیته هم ډېر لوړ ځای لري. د دغو ټولو وړتیاوو تر څنگ ئې د ادبي آثارو په باب خورا ډېري او مغزني څېړني کړي دي. په دغه لړ کي ئې ځیني مستقیم ادبي تحقیقات دي چي د هیواد په نشراتو او یا په ځانگړي ډول خپاره سوي دي او بله برخه ئې بیا د نورو پر آثارو په ځانگړې توگه د افغاني او خارجي ادبي آثارو پر کمي و کیفي خواوو کره کتني کړي او چاپ کړي دي.

د استاد عطایي دغسي ادبي کره کتني دوې خواوي لري، یوه ئې هغه ده چي پر ځینو افغاني داستاني آثارو ئې د کره کتني په موخه

خپل قلم چلولی دئ چي په دې برخه کې زه د لاندي آثارو پر کره کتنه او نقد پښي سوی یم:

د امانت پر ناول کره کتنه، د مامونۍ پر ناول کره کتنه او د امانت ناول سره د هغه مقایسه، د ګل خان په نامه پر پښتو ناول کره کتنه، د تربور پر پښتو ډرامه کره کتنه، د "رحمان کورونه" نومي داستاني اثر کره کتنه، د کوټې د اووم اکتوبر رزم یوه لنډه شننه او د چاودې ښیښه نومي داستان نقد.

د پورته ادبي آثارو زیاتره کره کتني د کابل مجلې په بېلابېلو ګڼو کي خپرې سوي دي.

دوهمه هغه ئې د نړۍ والو مشهورو داستاني آثارو کره کتنه ده، چي زیاته برخه ئې د زیري په اخبار کي خپره سوې ده. د دغو کره کتنو تر دېرشو زیاتي ئې ما په یاد اخبار کي په سرسري ډول کتلي او مطالعه کړي دي. په نړۍ والو آثارو کي ئې د امریکایي، انګرېزي، فرانسوي، روسي، ترکي، هالنډي او جرمني لیکوالو ډېر مشهورو آثارو ته کتني سوي دي او د هغوی پر بېلابېلو اړخونو د یوې مقالې په حجم رڼغېدلی او د یادو آثارو په باب ئې خپل انتقادي نظر ښکاره کړی دئ.

هره کتنه ئې دوې برخي لري. لومړۍ یا پیلیزه برخه د داستان د ماجراء پر جوهر راڅرخي، په دې برخه کي دا واضح سوې ده، چي د داستان له لیکلو څخه ئې د لیکوال موخه څه ده؟ او په کومه ټولنه کي چي داستان رامنځته سوی د هغې ټولنیز جوړښت ته د یوې ځانګړي زاویې څخه کتل سوي دي. دوهمه برخه د داستان پر شکلي جوړښت رڼا اچوي او د خپلي تبصري د اثبات له پاره د داستان بېلابېلي برخي په لنډیز سره راوړي.

د نړۍ والو پر آثارو د ارواښاد عطایي کره کتنو خورا اوږده موده په بر کي نیولې ده، له دغي مودې څخه د ارواښاد عطایي پر کاري او د خپل کار سره حوصله او زغم له ورایه معلومېږي. په دغه اوږده موده کي ئې پر سلو نړۍ والو داستانونو لنډي و اوږدې کره کتني کړي دي، په دې باب د استاد عطایي خپل قول داسي دئ: "د تقریباً درو کالو راپه دې خوا مي د نړۍ د معروفو او نخبه داستانونو څخه د سل داستانونو په حدودو کي تر څېړني لاندي و نیول چي دا څېړني په پرله پسې ډول د زېري په جریده کي چاپ سوې" (زېری: ۱۳٦۲ش، ۳۸ - ۳۹ ګڼه، "په نوې داستان لیکنه کي د فولکلور له منبع څخه د استفادې طریقه")

ارواښاد عطایي د نړۍ والو داستاني آثارو کره کتنه د یوې خاصي موخي له پاره کړېده، ده غوښتل چي د نړۍ والو آثارو د اغېزې او د نړۍ په خلکو کي د هغوی د ګرانښت او مقبولیت اسرار خپلو ځوانو داستان لیکوالو ته وښیي. په دې باب یو ځای لیکي: "په دې کار کي اصلي مراد دا وو چي زموږ ځوان داستان لیکونکي لیکوالان د داستان لیکني له دغه رمز سره آشنا سي چي د نړۍ د نخبه داستانونو د لیکوالانو آثارو ته ځکه دا ستر ارزښت ورپه برخه سوی دئ چي هغو په خپلو داستانونو کي د خپلي ټولني کلتوري خصوصیاتو ته انعکاس ور کړی دئ" (پورته ماخذ).

دغه کار که د استاد له آري او اساسي موضوع فولکلور پوهني سره سر لګوي، له بلې خوا موږ د نړۍ والو مشهورو آثارو په هغو اړخونو او خصوصیاتو هم پوهوي چې ولې دغو آثارو ته د بېلابېلو ټولنو افراد ارزښت ورکوي، نو ویلای سو چې استاد په یوه تیر دوه نښانه ویشتلي دي.

که څه هم ښاغلی خالق رشید د استاد عطايي د خارجي آثارو کره کتني ته ډېر خوشبین نه دئ او وايي چې په ډېر سرسري ډول پر تېر سوی دئ. ښاغلی رشید دغه کره کتني ته د چټکي کتني اصطلاح کاروي او بیا زیاتوي چې کېدای سي استاد عطايي ته د دغو آثارو لنډیز په لاس ورغلی وي او خپله کره کتنه ئې پر شروع کړې وي، (د پښتو هنري ادبیاتو د کره کتني لنډه تاریخچه، ۱۳۷۰ش کابل، ۱۱۲ - ۱۱۵ مخونه). زه په دې برخه کي د ښاغلي خالق رشید توضیحات پر ځای بولم خو دا ورسره زیاتوم چې استاد عطايي مرحوم دغه کره کتني د یوه اخبار له پاره کړي دي او هغه مرحوم دا درک کړې وه، که کره کتنه اوږده او مفصله وي کېدای سوای جریده ئې د چاپ حوصله و نه لري او یا به نو یوه کره کتنه په څو اونیو کي چاپېدلای.

دوهمه خبره دا چې د بهرنیو آثارو په باب د ښاغلي رشید نظر پر ځای دئ خو د افغاني آثارو په باب ئې کره کتني خورا ډېر ارزښت لري ځکه پر دغو افغاني آثارو ئې کوټلی او مغزن نظر څرګند کړی دئ او د دغو آثارو ټولي ښېګڼي او نیمګړي اړخونه ئې په خورا منصفانه ډول انتقاد کړي دي، چې د دوی له دغو کره کتنو څخه زموږ ځوان داستان لیکوال خپلي لاري مومي او د اروابناد عطايي د انتقادي نظریاتو په مطالعه سره د حقیقت روښنایي ته ځانونه رسولای سي.

**وروستی خبره:**

د داستاني آثارو په باب د اروابناد عطايي ټولي کره کتني له ارزښته ډکي دي، د دغو کره کتنو ځیني ځانګړتیاوي په لاندي ډول یادولای سو:

- د موضوع په لحاظ: د ادبي داستاني آثارو کره کتنه، هغه که د افغاني داستان لیکوالو پر آثارو وي او که د خارجي داستاني آثارو په باب وي، په پښتو ادبي کره کتنه کي یوه ارزښتمنه او مبرمه موضوع ده، د هغه مهال په پښتو مطبوعاتو کي به خال خال د دغسي موضوع د سپړني او څېړني څرکونه لیدل کېږي، خو په دې برخه کي د اروابناد عطايي کړی کار څو اړخیز اهمیت لري، یو دا چې استاد خپله په داستان لیکنه کي د پراخ صلاحیت څښتن دئ، بله دا چې د کره کتني او د بېلابېلو خواوو په باب کاري سابقه لري، نو ځکه ئې کړی کار هم په افغاني مطبوعاتو کي د پوره اهمیت لرونکی دئ.
- د کمیت له مخي: هغه مهال چې استاد عطايي د نړۍ پر مشهورو آثارو کتنه کوي، زموږ د ټولني ډېری

اوسېدونکي د خارجي آثارو په مشخص ډول د داستاني آثارو سره ډېر بلد نه دي، دغي تشي ته په کتو سره د استاد عطايي کره کتني د کميت له مخي ډېره لويه تشه ډکوي، ځکه په يوه مشخصه زماني مقطع کي د سلو نړۍ والو داستانونو په باب خپل نظر څرګندول هغه هم په انتقادي ډول د پښتو کره کتني په تاريخ کي يو بې ساري کار دئ.

- د کره کتني ژبه: د دغو آثارو په کره کتنه کي هغه ډول ژبه استعمال سوې ده، چي د ادبي آثارو د کره کتني او انتقاد له پاره ور او مناسبه وي. ژبه ئې له هر ډول ابهام او تعقيده خلاصه ده. د ليکلو سټايل ئې په زړه پوري دئ، په دې برخه کي ئې نه يوازي ساده والی او سلاست په پام کي نيولی دئ، بلکي هره مقاله ئې له پيله تر پايه د ځانګړي جذابيت څخه برخمنه ده، چي لوستل ئې نه غمېږي.
- د افغاني داستاني آثارو په باب د اروابناد عطايي د قلم زور او توانايي او پر يادو موضوعاتو لاسبري د دغسي کره کتنو اصلي او اساسي برخه ده، نه يوازي دا چي د دغو داستانونو ښېګڼي ئې په ډېره خوږه او پسته ژبه څرګندي کړي دي، تر څنګ ئې د نيمګړو خواوو په باب په ډېر جرئت نظر څرګند کړی دئ او ځوانو داستان ليکوالو ته ئې د توصيې په شکل د داستان ليکني معيارونه او اساسونه هم ښوولي دي چي هغوی ته بويه کار څني واخلي.

د پښتو ادبياتو محصلينو او شايقينو ته په کار دي چي د اروابناد استاد عطايي دغه کره کتني سره راټولي او په کتابي ډول چاپ کړي. په دې کار سره به ئې نه يوازي دا چي د پښتو ادبياتو د کره کتني پر کوټه يوه پر ځای اضافه کړې وي، بلکي د اروابناد استاد عطايي هغه خواری او زهره ترکی چي په دې برخه کي ئې پر ځان تېري کړي دي هم بې ځايه سوي نه وي، او زموږ د مشرانو فرهنګيانو له جملې څخه به د دغه حقدار محقق نظريات د ځوانو داستان ليکوالو له پاره د سرمشق سبب وګرځي.

پای

ټولوونکی: رزمي

## ګل خبري

- نړۍ د ژوند کولو له پاره خطرناکه ځای دئ، دا د هغو خلکو له امله نه ده چي خراب کارونه تر سره کوي بلکي د هغو کسانو د لاسه ده چي د بديو مخنيوی نه کوي.
- په ترلي موټ د لاس روغبړ نه کېږي .
- موږ ټول وايو چي د سولي سره مينه لرو خو د هغې په خاطر هغه راز زخمونه نه منو چي د جګړې په خاطر ئې منو.
- نبوغ په سلو کي يو الهام دئ او په سلو کي نه نوي د خولو تويول دي.

سرمحقق سید محی الدین هاشمي / کابل

# د اروابناد عطایي
# پر علمي - فرهنګي شخصیت تحلیلي کتنه

د هر وګړي د شخصیت پېژندنه او ارزونه معمولاً د ژوندانه په اوږده یا لنډ سفر او ډګر کي د هغه د علمي، فرهنګي، ټولنیز، سیاسي او ... دریځ، کړنو د څرنګوالي او څومره والي له مخي کېږي. په هره ټولنه کي داسي معمولي وګړي ډېر وي چي د شخصیت پېژندنه ئې په څو ټکیو، کلمو، کرښو، پراګرافونو او یا د کاغذ د څو محدودو پاڼو په مخونو کي تره سره کېدای شي، خو د دوی په وړاندي بیا داسي وګړي هم وي چي شخصیت ئې له ګڼو اړخونو برخمن او په خپل له ثمره ډک اوږده یا لنډ ژوند کي ئې په علمي، فرهنګي، سیاسي او ټولنیز لحاظ داسي ارزښتناکي کړني، برياوي او لاسته راوړني لرلي وي، چي نه یوازي د هغو خپله کورنۍ، قبیله، قوم او ټبر، ټولنه، اولس او هیواد بلکي د سیمي او نړۍ په کچه پرې بشریت ویاړي. د دغسي شخصیتونو د پېژندني، د ژوند د بېلابېلو اړخونو د څېړني او سپړني له پاره لویو علمي فرهنګي ادارو ته اړتیا وي، چي په ملي او نړۍ واله کچه د څېړنغونډو، سیمینارونو او علمي څېړنیزو ځانګړو یا ډله ییزو پروژو له لاري دا چار تر سره شي، تر څو د آثارو او افکارو شنني او تحلیل او یا د شتو باوري معلوماتي سرچینو له مخي د هر اړخیزو لیکنو او څېړنو په پایله کي د هغوی د شخصیت، اند او ژوند بېلابېل اړخونه پوره جوت او د پېژندني لازم حق ئې تر سره شي.

زموږ د هیواد په علمي او فرهنګي ډګر کي له دغسي وتلیو او منلیو څېرو څخه یو هم کاندید اکاډمسین محمدابراهیم عطایي (۱۳۰۸ - ۱۳۸۰هـ ش) دئ، چي دلته ئې د علمي او فرهنګي شخصیت د پېژندني هوډ او تکل لرو، خو دمخه تر دې چي د شخصیت پر دغه اړخ ئې د هغه د خپلو آثارو او افکارو په رڼا کي لنډ او ځغلند بحث وکړو، د شخصیت د دغه اړخ (علمي - فرهنګي) په اړه ئې د هم مهالو لیکوالو او څېړونکو لنډي څرګندوني را اخلو، چي دا به وروسته له موږ سره د موضوع په څېړنه او سپړنه کي لازمه مرسته وکړای شي.

د اروابناد عطایي د ژوند او شخصیت د پېژندني په اړه لومړی لیکنه چي زما مخي ته

راغله هغه د ارواښاد عبدالرؤف بېنوا هغه څرګندوني دي چي په خپل اثر اوسني ليکوال دريم ټوک کي ئې له نن څخه لږ و ډېر اته څلوېښت کاله دمخه کښلي دي.

نوموړی ليکي: "ښاغلی محمدابراهيم عطايي د حاجي مولوي عطاء محمد زوی، د پښتو ژبي پوخ ليکوال او ښه شاعر په ۱۳۰۹هـ ش کال د کندهار په ښار کي زېږېدلی او تر يوولسم ټولګي پوري ئې په کندهار او کابل کي تحصيل کړی دئ. په دري ژبه پوهېږي او په انګريزي ژبه هم مطالعه کولای سي، او د ده د ژوند زياته برخه په ليکلو او لوستلو کي تېره سوې ده ... د ليکني سبک ئې ساده او روان دئ، د لنډو کيسو او ناول ليکلو سره علاقه لري او هم زيار باسي چي د هيواد د زاړه کلتور د څرګندولو په لاره کي قلم وچلوي ... د اجتماعي نهضتونو په لاره کي هم کړېدلی دئ، چي يو له هغو څخه ئې په کندهار کي د ښځو د مؤسسې په تاسيس کي ډېر زيار ويوست ... او دی په خپله هم ليکي چي: "زما د ژوند خوشحاله خاطره هغه ورځ وه چي په کندهار کي د ښځو مؤسسه تاسيس سوه"[۱].

سرمحقق عبدالله بختاني خدمتګار چي کلونه کلونه ئې له ارواښاد عطايي سره په يوه فرهنګي ډګر کي د ژبې، ادب او فرهنګ د ودې او پرمختيا له پاره قلم چلولی دئ، په خپله هغه مقاله کي چي (د پښتو ژبې مشهور شاعران او ليکوالان) تر سرليک لاندي ئې د ۴۶ - ۱۳۴۷ کال د افغانستان کالنۍ له پاره ليکلې، وايي:

"د پښتو شاعر او ليکوال دئ، رسمي ماموريت ئې په ۱۳۳۰هـ ش کال شروع شو، او نور کارونه ئې په مطبوعاتي مؤسسو کي کړي دي ... په شمېر لنډي کيسې، هلمند د تاريخ په ساحه کي او انتقادي ادبيات د تاريخ په سير کي کتابونه ئې ليکلي دي"[۲].

سرمحقق زلمی هيوادمل چي د علومو په اکاډمۍ کي ئې کلونه کلونه له استاد عطايي سره يو ځای علمي - فرهنګي څېړنيزي چاري تر سره کړي، د استاد عطايي د علمي - فرهنګي شخصيت په اړه داسي نظر لري:

"کانديد اکاډميسين محمدابراهيم عطايي زموږ په معاصرو فرهنګيانو کي يوازينی سړی دئ چي د پښتني نکلونو د اجتماعي، هنري او کلتوري ارزښتونو په څرګندولو کي ئې علمي کار کړی دئ. ځيني ښاغلي به دا اعتراض وکړي چي ولي ئې عطايي صاحب ته د "يوازينی" خطاب وکړ. ولي مرحوم نوري خو په کابل کالنۍ او پروفيسور سيال کاکړ خو هم د پښتو نکلونو په مقدمه کي پر پښتو نکلونو څېړني کړي دي. زه د دغو ښاغلو کارونو ته د درناوي تر څنګه دا په ډاګه وايم چي عطايي صاحب بيا هم په دې لاره کي يوازينی سړی دئ، ځکه چي کوم پرله پسې کار ده کړی دئ، نه زموږ دوو يادو شويو ښاغلو کړی او نه بل چا"[۳].

سرمحقق علي محمد منګل يو بل پياوړی څېړونکی او فولکلوريسټ دئ چي د افغانستان علومو اکاډيمي کي ئې له ارواښاد عطايي سره يو ځای د فولکلور او کلتور په

ساحه کې پراخې څېړنيي چارې تر سره کړي دي، نوموړی ليکي:

"کانديد اکاډميسين محمدابراهيم عطايي د خپل څه کم شپېتو کلونو مطبوعاتي خدمت، څېړنو، ترجمې او پلټنې په لړ کې په لسګونو آثار په پښتو او فارسي ژبو د فرهنګ ګلستان ته وړاندې کړل، له همدې کبله د ګران هيواد په معاصرو ليکوالو کې کانديد اکاډميسن محمدابراهيم عطايي ښه ليکوال، څېړونکی او مترجم وو، چې په دغه فرهنګي (ادبي، تاريخي او فولکلوري) کار سره ئې نوم ژوندی او جاويدان دئ..."(۴).

سرمحقق نعمت الله اندړ هم چې ورسره يو ځای کلونه کلونه په علومو اکاډيمي - پښتو څېړنو نړۍ وال مرکز کې علمي - څېړنيزې چارې تر سره کړې د اروابناد عطايي د علمي - فرهنګي شخصيت ارزونه په يوه ليکنه کې داسې کړې ده:

"اروابناد عطايي نه يوازې د تاريخ په اړه څېړنې کړي، بلکې د پښتني فرهنګ، کلتور، اتنوګرافۍ او اتنولوجۍ (وګړپوهنې) په اړه ئې د قدر وړ څېړنې کړې دي. هغه د پښتنو د فرهنګي او کلتوري جوړښت په اړه دومره څه پخپله سينه کې درلودل چې په اصطلاح يو ژوندی دايرة المعارف ورته ويل کېدای شو او د ده څېړنې او پلټنې به تل د لومړي لاس ماخذ په توګه د ګټې او استفادې وړ وي"(۵).

نوميالي څېړونکی، ليکوال او کره کتونکی ښاغلي محمدمعصوم هوتک د اروابناد عطايي علمي - فرهنګي شخصيت په اړه ليکلي دي:

"اروابناد محمدابراهيم عطايي د افغانستان د علومو اکاډيمۍ يو فعال غړی، پرکاره څېړونکی او مطبوعاتي شخصيت وو. چې نژدې نيمه پېړۍ ئې د افغانستان د تاريخ، ادب، فولکلور، ژبو او توکمونو په باب پخې څېړنې کړي او خپرې کړي دي. تر څنګ ئې د مطبوعاتو پر ډګر په کندهار، هلمند او پکتيا کې د دولتي ورځپاڼې د چلولو دندې په ښه توګه پر مخ بېولي دي. د پښتني فولکلور د شنلو او تحقيق د عصري اصولو پر بنسټ ئې د پښتنو د ملي افسانو او نکلونو په باب ابتکاري څېړنې کړي دي. په پښتني افسانو کې د ټولنيزو او تاريخي فوسيلونو پر کشف هم بريالی سوی دئ ... د پښتني ټولنې په اتنوګرافيک جوړښت کې ئې هم د تحقيق نيلی ځغلولی او د هغو په ملي رواياتو کې ئې د اتنوګرافۍ له نظره خورا درانه او مهم حقايق موندلي دي. د افغانستان د تاريخ او د افغان اولس د ملي حماسو په هنري بيان کې ئې قلم چلولی دئ"(۶).

دغسې د اروابناد عطايي د علمي - فرهنګي شخصيت په باب د ده د هم مهالو يو شمېر نورو ليکوالو، څېړونکو او کره کتونکو نظرونه او اندونه هم شته، چې موږ ته د اروابناد علمي - فرهنګي شخصيت له بېلابېلو اړخونو راځلوي او جوتوي، خو موږ به په همدغو يادونو او ځرګندونو بسنه وکړو او د ده شخصيت علمي - فرهنګي اړخ به د ده په خپلو آثارو او افکارو کې وځيرو او په لنډه توګه وڅېړو:

د اروښاد محمدابراهیم عطایي علمي – فرهنګي شخصیت ګڼ اړخونه لري. پیاوړی عالم وو، رسمي زده کړې ئې تر یوولسم ټولګي پورې په خپله سیمه کندهار او کابل کې کړې وې، خو دا چې په یوه عالمه او روحاني کورنۍ کې ئې سترګې نړۍ ته غړولې او پکې رالوی شوی وو، د دیني او ادبي علومو زده کړه ئې په خصوصي توګه په خپله کورنۍ او سیمه کې تر سره کړې او بیا ئې د بېلابېلو رسمي دندو په بهیر کې چې د پوهنې وزارت، د مطبوعاتو د مستقل ریاست او بیا د اطلاعاتو او کلتور وزارت، د قومونو او قبایلو په مستقل ریاست، د علومو اکاډمۍ د تاریخ او اتنوګرافۍ په انستیتوت او نورو ځانګو کې تر سره کړې، د ټولنیزو علومو او فنونو په بېلابېلو برخو کې پراخې مطالعې ته دوام ورکړی او د یوه پیاوړي عالم په توګه راڅرګند شوی، چې د دوی لیکلو علمي – څېړنیزو او معلوماتي آثارو ته په کتنه ور ته د علومو اکاډیمۍ لوړه علمي درجه او رتبه (کاندید اکاډمیسین) ورکړل شوې وه.

تکړه او نوماند ژورنالیست وو، له عصري او خصوصي زده کړو وروسته ئې لومړنۍ دنده (۱۳۳۰هـ ش کال) د ښوونکي تر څنګ د هیواد د مطبوعاتو په ډګر کې وه، چې بیا وروسته ئې په ترتیب سره د کندهار د طلوع افغان ورځپاڼې مسئول مدیر (۱۳۳۵هـ ش)، د کندهار د مطبوعاتو د مرستیال (۱۳۳۷هـ ش) او بیا د هلمند ولایت د نشراتي مؤسسې آمر او د هلمند اخبار د چلوونکي په توګه او څه موده ئې په ننګرهار او پکتیا کې ژورنالستي او مطبوعاتي دندې هم تر سره کړې او د دې تر څنګ ئې د هیواد د مطبوعاتو په ځانګړې توګه د مرکز له مشهورو اخبارونو او مجلو سره قلمي همکاري درلوده او د یو نومیالي ژورنالست او مطبوعاتي په توګه له لوړ نوم او شهرت څه برخمن وو.

پیاوړی لیکوال او څېړونکی وو. له شلو څخه زیات په پښتو، دري او انګلیسي ژبو مستقل چاپ شوي علمي څېړنیزو آثارو سربېره چې د تاریخ، ادب، فرهنګ، کلتور او فولکلور، وګړپوهنې او نورو موضوعاتو په هکله دي په سلګونو علمي، څېړنیزې او ډول ډول معلوماتي مقالې ئې د هیواد په مهالنیو چاپي خپرونو په ځانګړې توګه په کابل مجله، آریانا مجله، عرفان مجله، ژوندون مجله، کندهار مجله، هیواد ورځپاڼه، انیس ورځپاڼه، اصلاح ورځپاڼه، زېری جریده، او نورو کې خپرې شوي چې موږ ته نوموړی د یو پیاوړي لیکوال او څېړونکي په توګه راپېژني.

نومیالی مؤرخ، لرغونپوه او اتنوګرافست وو. په دغو برخو کې لیکلي مستقل آثار لکه: د پښتونستان مسئله د حق او خودارادیت په رڼا کې، د پښتنو او بلوڅو تاریخي کرونولوژي، د بلوڅو ملي آزادي بخښونکي جنبشونو ته یوه کتنه، د افغانستان پر معاصر تاریخ یوه کره کتنه، صحفه از تاریخ هلمند، تحقیق اتنولوژیکی بر فاکتور زعامت در جامعه، هندوکش شرقی و تحقیقات باستانشناسی در دره های آن، خېل او وېش، د لرغوني افغانستان او قبایلو اتنوګرافي، پر حدود العالم من المشرق الی المغرب د اتنوګرافۍ له نظره بحث، تحقیق اتنولوجیکی

مؤسسه قانون در جامع قدیم قبیلوی او نور او همدارنگه علمي څېړنیزي لیکلي چاپ شوي مقالې زموږ د دې ادعا ډېر ښه ربنتینتوب او څرګندويي کوي.

د یو پیاوړي فولکلور څېړونکي په توګه منل شوی او پېژندل شوی دئ، هلمند د کلتور په ساحه کې، د پښتو پر شفاهي داستان یوه تحلیلي کتنه، ملي هینداره د اجتماعي څېړنو له نظره او ... په نومونو مستقل چاپ شوي کتابونه او د دلې او شهې د کیسې فولکلوري ټیپ، په کیسه کې د قبیلوي جرګې موقف او صلاحیت، د ټیپولوجیکي پلوه د صدر خان خټک پر آدم خان درخانۍ یوه لنډه څېړنه، په کیسه کې د قبیلوي جګړو منظره، او داسې نوري په لسګونو خپرې شوې مقالې موږ ته نوموړی د یو پیاوړي فولکلوریست او فولکلور څېړونکي په توګه راپېژني، چې په دغه برخه کې لیکلي آثار ئې د پښتني فولکلور پوهنې او څېړنې ډېرې باورې سرچینې ګڼل کېږي.

وتلی او منلی ادیپوه (ادب څېړونکی او ادبي کره کتونکی) او د پښتو هنري داستاني ادبیاتو ښه لیکوال دئ. په پښتو ادبیاتو کې د کیسې برخه (۱۳۵٦هـ ش)، سل معروف نړۍ وال داستانونه (له بهرنیو سرچینو څخه ژباړه)، انتقادي ادبیات د تاریخ په سیر کې ځانګړي ادبي څېړنیز آثار، د پښتو په معاصر اوسني ادب کې د انتقادي ریالیزم پیل او تکامل، د ملي ادبیاتو ټیپولوژیکي چوکاټ او ... په نومونو مقالې (ادبي څېړنې)، د ګل خان په نامه پښتو ناول کره کتنه، د چاودي ښېښې ناول کره کتنه او داسې نوري په لسګونو ادبي څېړنې او کره کتنې هغه لیکنې دي چې موږ ته اروابناد عطایي د یوه ادب پوه په توګه راپېژني. همدارنګه د آسیا په زړه کې توپان تاریخي ناول (۱۳۵۹هـ ش)، د پیواړ حماسه تاریخي ډرامه (۱۳۵۸هـ ش)، د توپان شپه (ادبي ټوټه)، سره (لنډه کیسه) د هنري ادبي نثر هغه بېلګې دي چې د هغو له مخې موږ نوموړی د هنري تخلیقي ادبیاتو پیاوړی لیکوال هم بللای شو.

د عبدالرؤف بېنوا په لیکلې مشهوره ادبي تذکره (د پښتو اوسني لیکوال - دریم ټوک) کې ئې له پېژندنې سره (د سبا منظره) په نوم دا لاندې راغلی نظم:

د شرق خوا ته څه روڼا وه
دافق پر څنډو باندې
کائنات ډوب په سکوت وه
د یو لوی عظمت په وړاندې
د جمال مناظر ډېر وه
د جلال تر بساط لاندې
دآسمان پېغلې نیم مخ وو
نهام کړې د غره شا ته
لکه ناوې چې له شرمه
تر پلو ګورې یو خوا ته
تر پایه[۷]

له دې پورته شعر څخه څرګندېږي چې اروابناد عطایي به د خپل ادبي ژوند په لومړیو پړاوونو کې په شعر ویلو کې هم خپل استعداد او قلمي ځواک ازمویلی وي، خو بیا وروسته چې په څېړنو او نورو مطبوعاتي کارونو بوخت شوی، شاعري به ئې پرې ایښې وي، ځکه ما

بل چيري د نوموړي خپاره شوي شعرونه و نه موندل. خو کومو تذکره ليکونکو چې ئې ژوندليک خپور کړی، هلته ئې د ده د شاعرۍ يادونه هم کړېده[۸].

نو دغسي موږ د ده په علمي – فرهنګي شخصيت کي د شاعرۍ د اړخ يادونه هم کولای شو.

د بحث لنډيز او پايله:

د ارواښاد عطايي د علمي – فرهنګي شخصيت د پېژندني په اړه که د بحث دا خوره وره لمنه راونغاړو، نو د نوموړي د ژوند پېښنو او راپاته تر شلو زيات مستقلو آثارو، په سلګونو علمي، ادبي، تاريخي، او د ټولنيزو علومو او فنونو د بېلابېلو موضوعاتو په اړه خپرو شويو مقالو ته په کتنه ئې د علمي – فرهنګي شخصيت په باب خپله ارزونه په پايله کي داسي وړاندي کوو، چي:

ارواښاد کانديد اکاډميسن محمدابراهيم عطايي زموږ د معاصر علمي – فرهنګي بهير هغه وتلې او منلې څېره ده چي د خپل لږ و ډېر پنځوس کلن فرهنګي ژوند په اوږدو کي د ژبې، فرهنګ او کلتور د ودي او پرمختيا له پاره قلم چلولی او په دغو برخو کي ئې ډېر ارزښتمن علمي، ادبي، تاريخي څېړنيز آثار ليکلي او پنځولي دي چي له امله ئې نوموړی د تکړه او پياوړي ژورنالست، فولکلوريسټ، مؤرخ، ادب پوه او کره کتونکي په توګه زموږ د معاصر فرهنګي بهير له مخکښانو او حقدارو فرهنګيانو څخه ګڼل کېږي. ارواح ئې ښاده او ياد ئې تل.

اخځليکونه:


۱. بېنوا، عبدالرؤف، د پښتو اوسني ليکوال، دريم ټوک، د پښتو د تعميم او انکشاف لوی مديريت، ۱۳۴۶هـ ش کال، ۱۱۳۷ مخ.
۲. بختاني، عبدالله خدمتګار، د پښتو ژبې مشهور ليکوال او شاعران (مقاله)، د افغانستان کالنی، ۴۶ – ۱۳۴۷هـ ش کال، ۱۳۶ مخ.
۳. هيوادمل، زلمی (سرمحقق)، د پښتو پر شفاهي داستان يوه تحليلي څېړنه، سريزه، (هـ، و) مخونه، ۱۳۷۰ هـ ش کال.
۴. منګل، علي محمد (سرمحقق)، کابل مجله ۷ – ۸ ګڼه، د ژبو او ادبياتو مرکز، د علومو اکاډمي، ۱۳۸۱ لمريز کال، ۹۲ مخ.
۵. اندړ، نعمت الله (سرمحقق)، د کانديد اکاډميسن محمدابراهيم عطايي ژوند او آثار، د څېړنياري شکيلا مياخېل علمي څېړنيزه پروژه، تقريظ، الف مخ، ۱۳۸۸ ش.
۶. هوتک، محمدمعصوم، دارواښاد کانديد اکاډميسن محمدابراهيم عطايي په ياد (مقاله)، کندهار مجله، پنځم کال، څلرمه ګڼه، د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ رياست، ۱۳۸۵ لمريز کال، ۲۴ مخ.
۷. اوسني ليکوال – دريم ټوک، ۱۱۳۹ مخ.
۸. اوسني ليکوال او د افغانستان کالنی ۴۶ – ۱۳۴۷ کلونه.
۹. شکيب عبدالظاهر، (څېړنوال) د ارواښاد محمدابراهيم عطايي لنډ ژوندليک، سيمينار ته ليکلې مقاله.
۱۰. په مقاله کي د ليکوال ياد شوي آثار.



څېړندوی رفیع الله نیازی/کابل

# د پښتني قبيلو اصطلاحي قاموس تحليلي کتنه

(د پښتني قبيلو اصطلاحي قاموس) د اروابناد کاندید اکاډمیسن محمد ابراهیم عطايي هغه اثر دئ، چې د افغانستان د علومو اکاډيمۍ د پښتو څېړنو د بين المللي مرکز له لوري په ۱۳۵۷ لمريز کال په دولتي مطبعه کې د پنځه سوو ټوکو په شمېر چاپ شوی دئ. دا اثر ټولټال (۱۴+۳۲۵) مخونه لري، يو تشريحي قاموس دئ، چې څه کم څلور سوه اصطلاحات، کلمې او نومونه يکښې په اصطلاحي ډول تشريح شوي دي. قاموس په يادښت پيل شوی، سريزه، د پښتنو د قبيلوي کلتور ساحه، د پښتني قبيلو د حقوقي تعاملاتو پر حقوقي موسسه لنډه څېړنه او د قاموس د اصطلاحاتو کيلي، سرليکونه لري او د اثر په پای کې د پښتني قبيلو د حقوقي تعاملي اصطلاحاتو قاموس فهرست راغلی دئ. په دې قاموس کې لومړی اصطلاحات معنا شوي بيا تعريف او تشريح شوي، خو د معنوي اړخ پر ځای ئې اصطلاحي اړخ ډېر څېړل شوی دئ، دا اثر په انګليسي ژبه هم ژباړل شوی دئ. قاموس عربي کلمه ده، په انګليسي کې ورته (Vocabulary يا Dictionary) وايي په پښتو کې ئې د سيند د منځ ، د سيند تل، د لغاتو زېرمه او داسې نوري معناوي راغلي دي. د قاموس ليکنې (Lexicology) له مخې په عام ډول قاموسونه پر دوه ډوله دي: (ژبني قاموسونه او دايره المعارف (Encyclopedia) "په ژبنيو قاموسونو کې دوې ژبې، څو ژبې او يو ژبي قاموسونه وي. په دوه ژبي او څو ژبي قاموس کې د يوې کورنۍ دوې ژبي قاموس او د بېلابېلو ژبو دوې ژبي قاموسونه شامل دي. په يو ژبي قاموس کې لهجوي قاموس، د تلفظ قاموس، احصائيوي قاموس، د ادبي اصطلاحاتو قاموس، د ليکوال

قاموس، د خارجي کلمو قاموس، ایتمولوژیکي قاموس، تاریخي قاموس او همدارنګه مسلکي، سیاسي، تخنیکي او د بېلابېلو علومو، لکه: ژبپوهني، ادبیاتو، اقتصاد، فزیک، کیمیا او بیالوژي قاموسونه راتلای شي (۱)".

په دې لیکنه کې زموږ تر بحث لاندې قاموس د دایرة المعارف قاموس په اړانه کې نه دئ شامل، نو ځکه پر دایرة المعارفي قاموسونو له خبرو کولو ځخه ډډه کوو. د اروابناد عطایي صاحب (د پښتني قبیلو اصطلاحي قاموس) د جوړښت او منځپانګې له مخي د ژبنیو قاموسونو په ډله کې یو ژبی قاموس دئ، چې د پښتنو د قبیلوي جوړښت د ټولنیز ژوندانه د ورځنیو چارو د سمون له پاره ئې دود اصطلاحات په پښتو ژبه تعریف کړي او تشریح کړي دي. په پښتو ژبه کې تر عطایي صاحب وړاندې هم ځینو ختیځپوهانو او پخپله ځینو پښتنو لیکوالو د پښتني چاپیریال دود اصطلاحات راجمع کړي او تشریح کړي ئې دي. په دې برخه کې د بهرنیانو له ډلې د الفنسټن، ګولډن شټیټ او ځینو نورو او په پښتنو لیکوالو کې د عبدالواسع کندهاري، محمدګل نوري، عبدالرحمان پژواک، امین الله سرتېر، محمدګلاب ننګرهاري، صدیق الله رښتین او ځینو نورو نومونه د یادولو وړ دي. له دې سره په ځنګ کې په پښتو ژبه کې پر پښتو اصطلاحاتو ځیني ځانګړي کارونه هم شوي دي، لکه: "د (پښتو ایډیم) په نوم قاموس چې میجر ګیورګ والټر ګیلبرټس لیکلی او په ۱۹۳۲ م کال چاپ شوی، د (پښتو اصطلاحات او محاورې) اثر چې په ۱۳۲۰ ل کال پښتو ټولنې چاپ کړی، (پښتو محاورې) اثر په ۱۹۷۰م کال د پښین د پښتو د ودې ټولنې له خوا چاپ شوی او (پښتني نومونه) په ۱۹۷۴م کال د کوټې په اسلامیه پریس کې چاپ شوی دئ"(۲).

د یادو لیکوالو له کړي کار سره د عطایي صاحب د کار توپیر دا دئ، چې نورو لیکوالو په بېلابېلو لیکنو او رسالو کې د پښتو ژبې بېلابېل ژبني اصطلاحات راټول کړي او څېړلي ئې دي، خو دلته په ځانګړي ډول د پښتنو د قبایلي ژوند په جرګو مرکو کې د نرخونو حقوقي - جزایي او تعاملي اصطلاحات د یوه اصطلاحي قاموس په بڼه راټول شوي او تشریح شوي دي. دا خبره هم د یادوني وړ ده، چې په دې قاموس کې ځیني اصطلاحات دي او یو شمېر پکښې نومونه دي، چې د اصطلاح له تعریف سره برابر نه دي، خو په پښتني ټولنه کې د حیثیت له مخې د دغو نومونو اصطلاحي پس منظر ئې تشریح شوی دئ".

اصطلاح یا (Expression ) له معنوي او نحوي اړخه یو داسې نه شنل کېدونکی ترکیب وي، چې له راز راز کلمو او وییکو (اداتو) ځخه رامنځته شوی وي او په ژبه کې زیاتره، لکه متل یو نه اتکل کېدونکی لرغونتوب لري"(۳).

یعنې اصطلاح د بڼې او معنا له مخې نه تجزیه کېدونکی ترکیب ګڼل کېږي، یا دا چې د دوو یا زیاتو کلمو یو داسې ترکیب دئ چې په نحوي چاپیریال کې ځانته څه نا څه شکلي خپلواکي او یووالی ساتلای شي، یعنې له هر راز اوښتني رااوښتني سره نه مخامخېږي بلکې مخکې له مخکې ئې یوه ثابته ګرامري اوښتنه او بدلون تر شا پرې ایښی وي او په وینا کې ئې یوازې هماغه وروستې توکي له نوي اوښتون سره مخامخېدای شي، لکه: غوږ نیول، زړه خوړل، لاس اخیستل، لاس تر زنې کښېناستل او نور. لنډه دا چې په دې قاموس کې ټول څېړل شوي مطالب د ګرني یا اصطلاح د تعریف له

مخي د اصطلاحاتو په کتار کي نه شي حسابېدای، د ساري په ډول، لکه: اکا، اوجره، ایسار، باور، بانډه، پټکی، پښ، ترکاڼ، ترور، څلی، ډم، مېلمه، مسافر، ګرم، کور، کفن، کشر او دې ته ورته نور.

د علم له پرمختګ او تمدن سره د انسانانو د ژوند په هره برخه کي ستر بدلونونه راځي، کليوالي ژوند له حالاتو او شرايطو اغېزمنېږي، قبيلوي جوړښتونه کاواکه کېږي، دودونه او رواجونه بدلېږي، د بوختياوو له امله انساني راشه درشه ټکنۍ کېږي، ژبې پر خپل حال نه پاته کېږي، ځيني لغات له منځه ځي ځای ئې نوري کلمې نيسي، يا يوازي يوې سيمي او ګړدودو ته پاته کېږي، ان دا چي د وخت په تېرېدو سره د ځينو کلمو معنا او مهفوم هم بدلېږي، نو د دې له پاره چي د يوې ژبې لغوي پانګه خوندي پاته شي، د ويونکو او څېړونکو له پاره د ستونزمنو لغاتو يا د هغو لغاتو په برخه کي مرسته وشي، چي له نورو ژبو څخه راغلي دي، يا يوازي د يوه سيمه ييز ګړدود برخه وي، نو د همدغو اړتياوو او دلايلو پر بنسټ د قاموسونو ليکلو ته اړتيا پېښېږي. په دې قاموس کي د راټولو شوو اصطلاحاتو، نرخونو او نومونو د ثبت اهميت په دې کي هم دئ، چي د پښتنو د قبايلي ژوند د سمون او کنټرول قوانين پکښې خوندي شوي دي. له تاريخي پلوه ئې اهميت دا دئ، چي د دغو نرخونو او اصطلاحاتو ثبت زموږ د سيمي د وګړو د تاريخ يوه برخه خوندي کړې ده، چي له راتلونکو نسلونو سره زموږ د تاريخ، کلتور او د ټولنيز جوړښت په پېژندنه کي ډېره مرسته کوي. په دې اثر کي ځيني داسې اصطلاحات، نومونه او نرخونه تشريح شوي، چي د حالاتو او شرايطو او د ژوندانه له پرمختګ سره نن سبا متروک شوي، خو له ورک کېدو او هېرېدو بچ شوي او د دې قاموس له برکته زموږ د ټولنيز تاريخ نه بېلېدونکې برخه ګرځېدلي دي.

قاموسونه ادبي، علمي او فرهنګي ميراث خوندي کوي، ژبني قاموسونه د ژبې له ټولو اړخونو، لکه: له ګرامر، ليکلي او شفاهي ادب، موسيقي، هنر، علمي او مسلکي اصطلاحاتو، فکري او ديني اعتقاداتو او له نورو ژبنيو ادبي او کولتوري ارزښتونو سره نه شلېدونکي اړيکي لري، نو ځکه د نورو ادبي جوړښتونو او فورمونو تر څنګ متلونه هم خوندي کوي. د پښتني قبيلو په اصطلاحي قاموس کي هم د پښتو ژبې ډېر متلونه نه يوازي دا چي خوندي شوي، بلکي د متلونو د پيدايښت کيسې او سرچينه هم راپه ګوته کوي، په دې اثر کي راغلي متلونه ټول ئې د پښتنو د قبايلي ژوند له حقوقي، جزايي او تعاملي نرخونو څخه زېږېدلي دي. د بېلګې په ډول مو دلته ترې ځينې متلونه راخيستي دي؛ لکه: د مېړه خبره يوه وي، څلوېښت کسه هندوان وو بدرګه يې لا هم غوښته، د نيمي شپې ناره بې څه نه وي، ساري مي يې، خو سيال مي نه يې، چي مور يې بتياری وي زوی ئې نه فتح خان کېږي، بوچ له اختره خلاص دئ، چي په روغه کېږي په جنګ کله موندل کېږي، کونډه د کام ده، له وطنه ووځه خو له نرخه مه وځه. دا متلونه هر يو ئې د پښتنو د قبايلي معاملاتو له يوه نرخه سرچينه اخيستې، لکه په قبيلوي ژوند کي د خونديتوب له پاره که يو سړی يا ډله چي له چا سره خوندي کېږي هغې ته بدرګه ويل کېږي. همدارنګه د نيمي شپې نارې، د دوښمن د يريد، طبيعي افتونو لکه سېلاب يا د بل خطر له پاره په پښتني سيمو کي ناځاپي د شپې نارې کېږي، هغه څاروی چي غوړ ئې نه وي قرباني

پرې نه کېږي، څکه وايي بوچ له اختره خلاص دئ، کونډه د قام ده که کومه ښځه کونډه شي، نو د مېړه له قامه پرته بل چېرته مېړه نه شي کولای او يا دا چې که نرخيان د کومې پېښې په اړه پرېکړه کوي نو پلې کېدل ئې ارومرو دي، يعنې د نه منلو په صورت کي به وطن پرېږدې خو له نرخه به نه وځي اوس اوس خو لا دا متل ان ښاري ټولنو کي هم کارول کېږي چي له ښاره ووځه خو له نرخه نه، خو په دومره توپير چي دلته له نرخ څخه پښتني نرخ نه بلکي په ښار کي د اجناسو قيمت يا نرخ مراد دئ. ځيني داسي کلمې هم پکښې راغلي، چې مخينه ئې ان د پخوانيو آريايانو زمانې ته رسېږي، لکه ګومل "ګومل په ارګون کي يوه سيمه ده، چي په لرغونو متونو کي ئې هم يادونه شوې ده او کنايتاً د پلار او نيکه مځکه هم ګومل بلل کېږي په دې اړه متل هم دئ، چې ورور وڑلی ښه دئ که ګومل پرې ايښې، يا ګومل پرې ايښې ښه دئ نه ورور وڑلی. ګومل يوه لرغونې سيمه ده، چي د سرو او تودو سيمو تر منځ لار ورڅخه تېرېږي او د هندوستان خوا ته لرغونې لار همدغه د ګوملي پر بند ور اوښتله. داسي معلومېږي، چي آريايي قبيلې له دغي لارې د هند ورشوګانو ته ورښوه شوي دي دا نوم په ريګويد کي د (ګوماتي) په نامه راغلی او يادونه ئې هم د ريګويداد په (ماروت) سرود کي شوې ده"(۴).

دا چي په لره او بره پښتونخوا کي پښتانه قبايل سره ګډ او په ځينو سيمو کي لږ تيت ژوند لري او ورسره هره سيمه او قبيله ځيني ځانګړي نرخونه، دودونه او کړه وړه لري، نو له همدغه امله که يوه ګړنه يا کلمه په يوه سيمه کي يوه مانا ښندي، نو په بله سيمه کي سره لږ ډېر توپير يا چورلټ بل ډول وي. (د پښتني قبيلو په اصطلاحي قاموس) کي د ځينو نومونو په اصطلاحي معنا کي فکر کوم يوازي يوه سيمه په پام کې نيول شوې، د ساري په ډول د چړي د کلمې اصطلاحي تعريف ئې داسي کړی دئ: "چړي د مسجد (جمات) خادم دئ، چړي د ملا مرستيال هم وي، د جرګې او مرکې پر وخت چړي د جمات په ور کي درېږي او د خيرات په وېشلو کي د مرکه والو مرسته کوي. د ارواښاد استاد پوهاند رشاد له يادښته پرې دا هم زياتوي، چي (چړي د طالبانو او ملايانو لپاره ډوډۍ هم ټولوي، دغه ډوډۍ چي په دروېزه ئې ټولوي چړ بلل کېږي)"(۵).

تر کومه بريده چي زه پوهېږم په ډېرو پښتني سيمو کي چړي، چي ځيني پښتانه ئې چنې هم بولي هغه نابالغ په عمر وړوکي د ديني علومو طالب ته ويل کېږي، چي په مسجدونو کي ديره نورو لويو طالبانو ته له کلي څخه ډوډۍ چي وظيفه ئې بولي راټولوي، نه د مسجد خادمي کولای شي، نه د امام مرستيال او نه په جرګه او مرکه کي کوم رول لري. که احياناً په کومه پښتني قبيله کي د چړي تعريف هغه ډول وي، لکه په قاموس کي چي راغلی نو داسي وګڼئ چي په دې برخه کي به زما معلومات او پوهه کمه وي. قاموسونه معمولاً د نورو ليکل شوو قاموسونو په مرسته ليکل کېږي، دا چي د پښتني اصطلاحاتو په برخه کي پخوا هم کار شوی، نو تر ډېره بريده ليکوال د دې قاموس د ليکنې په برخه کې د ماخذ يادونه نه ده کړې. زما په اند دا چاره دوه لاملونه لري، يو دا چي ښايي دا به ئې د قاموس ليکنې لومړنۍ تجربه وه، يا ښايي په بېلابېلو پښتني سيمو کي د دولتي او هغه هم د فرهنګي ماموريت له امله عملاً له دغو ټولو اصطلاحاتو سره مخامخ شوی او

اشنا شوی او د لیکوال د وینا پر بنسټ چې د ځینو اصطلاحاتو په اړه خو ئې له یو شمېر خلکو سره خبرې هم کړې، خو بیا ئې هم په قاموس کې د ماخذ لیکنې له اصولو سره سم ماخذ نه دئ ذکر کړی. په پښتني ټولنه کې دود نرخونه او اصطلاحات د پښتون قام د تاریخ، کولتور او کړو وړو هینداره ګڼل کېږي، چې د تاریخ په بېلابېلو دورو کې پښتني چاپېریال څه ډول وو، د څه ډول اصولو او چوکاټونو په رڼا کې پښتنو قبایلو ژوند کړی دئ، چې له نېکه مرغه د نرخونو په برخه کې (د پښتني قبیلو اصطلاحي قاموس) تر یوه بریده دغه تشه ډکه کړې او خوندي کړې ده. "قاموس لیکنه یوازې د یوه لغت د مهمو ماناګانو رانقلول او کاپي کول نه دي، بلکې په دې برخه کې د قاموس لیکونکي ځانګړی استعداد او لیاقت مهم رول لوبولی شي، یعني یوه لغت په ډېرو پخوانیو وختونو کې څه مانا او مفهوم درلود او په دې نږدې او معاصرو وختونو کې ئې څه ډول مانا ځانته غوره کړې ده"(۶) او له دې سره په څنګ کې قاموس لیکونکی باید په ژبپوهنه کې پراخه مطالعه ولري، په غږ پوهنه او نحوه وپوهېږي، د الفاظو د معنوي اړخونو او سیمانتیک په برخه کې د پوهې خاوند واوسي.

سره له دې چې اروابناد عطایي صاحب سیستماتیکې لوړې زده کړې نه وې کړې، خو د ده د نورو اثارو له مطالعې، د فوکلور، ژورنالیزم، تاریخ او په ځانګړي ډول د (پښتني قبیلو د اصطلاحي قاموس) د لیکنې په برخه کې ئې علمیت، وړتیا او پوهه له ورایه څرګندېږي. موږ پوهېږو، چې د پښتني قبایلو له تاریخ، دودونو، کولتور، مېشت ځایونو، نرخونو، جرګو او مرکو او د پښتني چاپېریال د ټولنیز جوړښت په برخه کې د پراخې مطالعې تر څنګ د سترې پوهې خاوند وو، په ژبنۍ برخه کې ئې د ژبپوهنې او په ژبپوهنې پورې له اړوندي پوهې او مطالعې څخه سترګې نه پټېږي. دا ژبنی قاموس په خپل وخت کې د لیکوال یوه نوې هڅه وه او هره نوې هڅه له ځینو نیمګړتیاوو خالي نه وي، خو د دې اثر مثبت اړخونه دومره پیاوړي دي، چې په ډېرې سختۍ پکښې یوه نیمه تېروتنه پیدا کېدای شي او دغه ډول تېروتنې ان د سترو سترو علماوو په اثارو کې هم موندل کېږي، هغه څه چې ډېر د اهمیت وړ دي، دا دي، چې دې قاموس زموږ د پښتني قبیلوي ژوند، ستره کولتوري، فرهنګي، فولکوریکي، تاریخي، ټولنیزه، ژبنۍ او لغوي زېرمه خوندي کړې، که داسي نه وای نو نن به زما په څېر یوه مبتدي لیکوال ته پر دې اثر د دومره خبرو کولو موکه کله برابره شوې وای. اروابناد عطایي پښتو ژبې ته ډېر خدمتونه کړي، غنیمت اثار ئې په میراث پرې ایښي، چې هر یو ئې زموږ س ځوان نسل ته د لاربنود حیثیت لري، اروا ئې ښاده او یاد ئې تلپاته اوسه.

ماخذونه:


۱ - ناصر، نصر الله: د پښتو قاموس لیکنې تاریخچه، میرویس خپرندویه ټولنه پېښور، ۱۳۹۰ ل، ۶مخ.

۲ - پورتنی اثر: ۱۳۳-۱۳۴-۱۳۵-۱۳۶- مخونه.

۳ - زیار، مجاور احمد: پښتو پښویه، دانش خپرندیه ټولنه، ۱۳۸۴ل کال، ۳۲۵ مخ.

۴ - عطایي، محمد ابراهیم، د پښتني قبیلو اصطلاحي قاموس، د پښتو څېړنو نړۍ وال مرکز، ۱۳۵۷ل، ۲۳۴ مخ.

۵ - پورتنی اثر، ۸۲مخ.

۶ - عبدالحسیب حکیمي، (مترجم) قاموس څنګه جوړېږي، زیری (جریده)، ۱۳۶۱ کال، ۲۴۷۷ ګڼه.

فرهاد داوري / هلمند

# د کاندید اکاډیمیسن عطایي ژوند ته یوه کتنه

د پښتو ژبې درووند لیکوال او څېړونکی ښاغلی محمد ابراهیم عطایي په یوه ستره علمي کورنۍ کې د دې نړۍ د لوړو او ژورو سره مخ سو. ښاغلی عطایي د کندهار د لومړۍ ناحیې د شاه قبر په کوڅه کي په ۱۳۰۹ هجري شمسي کال کي سترګي روڼي کړې. دا هغه وخت وو چي نادرخان یو کال پاچاهي کړې وه، د شاهي کورنۍ لړۍ ګرمه روانه وه، د افغانستان سیاسي ثبات تر ډېره بریده ټینګ وو. کابل له کثافاتو څخه تازه پاک سوی وو، د بچه سقاو د غلو حکومت پر ګونډو سوی وو، خلکو ته نوي هیلي پیدا سوي وي، شاهي نظام بیا پښې ټینګي کړي وې. نړۍ د لومړۍ نړۍ والي جګړې له اوره راوتلې وه، د سوونو زره انسانانو ویني بهیدلي وې، خلکو له انسان وژني څخه کرکه درلوده.

دا چي ښاغلی عطایي د یوې ستري علمي کورنۍ غړی وو او پلار ئې د کندهار د ادبي انجمن له بنسټګرانو څخه و، له همدې امله د ده مخ هم د علم او پوهي پر لوري واوښتی. د قلم په رنګ یې د حالاتو انځورول زده کړل، د پوهي په لوړو او ژورو پوه سو، د انساني ټولني په حقیقي رازونو پوه سو او د انساني ټولني د بنسټیزو اصولو مطابق ئې د افغاني ټولني اساسات ولوستل. ښاغلي عطایي تر ۱۳۳۰ لمریز کال پوري زده کړي کولې، د ټولني هر بدلون ته متوجه وو. د انساني ژوند په لوستني بوخت وو. زده کړې ئې د وخت د رواج سره سمي بشپړي کړې او کار کولو ته چمتو سو. په ۱۳۳۵ل کال کي په کندهار کي د طلوع افغان ورځپاڼي د مدیر په توګه وټاکل سو. دا هغه وخت وو چي د ورځپاڼو، لیکنو او کتابونو سره د افغاني ټولني نوې اشنایي وه، په داسي وخت کي د ورځپاڼو چلول ډېره ستونزمنه خبره ده ځکه له یوې خوا د لیکنو مواد کم وي او له بلې خوا د لیکوالانو نېستي وي. خو ښاغلي عطایي د طلوع افغان وړانګي تر ټولو افغاني روشنفکرانو پوري ورسولې او د یوې منلي ورځپاڼي په توګه ئې خپروله.

ښاغلي عطایي د خدای ورکړي استعداد په څرګندولو کي سپما و نه کړه، په هره دنده کي ئې وړتیا ښودل، نو ځکه وروسته په هلمند، ننګرهار او پکتیا کي د اطلاعاتو او کلتور د آمر په توګه وګومارل سو. ښاغلي عطایي د رسمي ماموریت تر څنګ سیمه ییزي او تاریخي څېړني کولې او موړ ته ئې ۴۲ بېلابېل اثار پرېښودل. د ده په اثارو نه یوازې د پښتو ژبې لمن ښکلې ده، بلکي ډېرو نورو ژبو

هم د ده د اثارو په ژباړو خپلې لمنې رنګينې کړې دي. د ښاغلي عطايي يوه ځانګړتيا دا وه چې د خپل رسمي ماموريت هره لحظه ئې د خدمت تر څنګ د څېړنې او ليکوالۍ له پاره هم کاروله. ده په خپله کاري ساحه کې د سيمې لوستنه کول، په کلتوري قواعدو کې ئې ښې څېړنې کړې دي، چې غوره بېلګه يې د ده (هلمند د کلتور په ساحه کې) کتاب دئ. ده په دې کتاب کې د هلمند کلتوري ارزښتونه په اسانه او روانه ژبه ليکلي دي، د سيمې بنسټيز ارزښتونه ئې را ټول کړي دي او د سيمه ييزې لهجې لغاتونه ئې ساتلي دي. د هلمند د کلتوري قواعدو دا ډول را ټولونه ژوري کلتوري پوهې ته اړتيا لري، که دا کتاب په څو واره ولوستل سي نو دا به جوته سي چې د دې سيمې عرف او عادات، دودونه، عنعنې او بېلابېل کلتوري قواعد په ډېر مهارت را غونډ سوي دي او پر لوستلو ئې هر لوستونکی خوند اخلي. په ليکوالۍ کې روانوالی او ساده والی د ښې ليکوالۍ ځانګړتياوې دي، د ښاغلي عطايي ليکنه له دې ځانګړتيا څخه برخمنه ده او په ډېر ښه انداز ئې د ليکنو روانوالی ساتلی دئ. ښاغلي عطايي دا کتاب په پنځو برخو کې ليکلی دئ، په هره برخه کې ئې د هلمند يو اړخ څېړلی دئ، چې د کتاب تر پايه پوري د هلمند پېژندنې زياتره اړخونه بشپړ کېږي. د هلمند په اړه دا ډول بشپړ او هر اړخيز کتاب په تاريخي لحاظ موږ نه لرو.

اروانښاد عطايي د دې وړتيا درلوده چې د خپلې پوهې په زوره ډېر ګونګ او پېچلې موضوعات په ساده او روانه ژبه خلکو ته روښانه کړي. دا ډول وړتيا په ډېرو کمو ليکوالانو کې موجوده ده. د بېلګې په توګه (هلمند د کلتور په ساحه کې) په ۲۳ مخ کې دی د هلمند سيند د هلمند په شمالي برخه کې داسې انځوروي: "د هلمند په شمالي برخه کې د هلمند سيند د خلکو، ډبرو او لويو درو په غېږ کې را تېرېږي، په دغو ځايو کې د کرهنې له پاره هواري مځکې د سيند تر سطحې لوړې واقع دي، د موسی کلا او نوزاد کوچنې سيندونه چې د موسمي بارانو اوبه په هلمند ګډوي او نور کال وچ وي، د هغه ځای د زراعت له پاره کار نه ورکوي نو ځکه زراعت ئې په کارېزو کېږي...".

د ښاغلي عطايي په پورته څو جملو کې د شمالي هلمند ګلي انځور ليدل کېږي، د سيند له اوبو څخه د ګټې نه اخيستلو علت، د کارېزونو د جوړېدو علت او د کوچنيو سيندونو دندې او موسمي والی په ډېرو لنډو جملو کې روښانه کوي. د مرحوم عطايي د ژوند مسير د افغان کلتور ارزښتونو ټاکلی وو، د ده ټولنيز ژوند او سياسي اعمال د کلتوري او افغاني ارزښتونو پر بنسټ ول. نو ځکه کلتوري ميراثونه د انساني ژوند د بشپړتيا مهم اړخ بولي. ښاغلي عطايي د افغانستان په کچه په لويو او کوچنيو جرګو او مرکو کې ګډون کاوه، په زياتو جرګو کې د مهم غړي په توګه ګڼل کېده او د قبايلو په عالي جرګه کې ئې د رئيس په توګه برخه درلوده. په دې برخه کې د ده قلمي اثار هم موجود دي. ښاغلی عطايي سياسي بلوغ ته رسيدلی وو، د کوم ګوند غړيتوب ئې نه درلود، خو ټاکلی او معين سياسي نظر ئې درلود.

دا مقاله د کوټې په درې ورځني سیمینار کې اورول سوې ده



لیکوال: استاد محمد معصوم هوتک/کاناډا

# په اوسني عصر کې
# پښتو لیکدودي نیمګړتیاوې او اړتیاوې

درنو حاضرینو!

معززو مشرانو او ګرانو کشرانو! ښاغلو او آغلو!

ما ته د ویاړ ځای دئ چې د شال پر تاریخي مېنه د پښتو ژبې او ادب په یوه درنه غونډه کې د خپل قوم او ژبې او ادب له خواخوږو پوهانو سره یو ځای ناست یم. د دې درانه مجلس له ځینو برخه والو سره له پخوا پېژنم خو له یو شمېر نورو سره د پېژندګلوۍ ویاړ د همدغه درانه اجلاس له برکته راته میسر سو. البته په غونډه کې د حاضرو پوهانو له آثارو څخه د فیض اخیستلو افتخار مي له پخوا څخه درلود.

زه به وارد ګښته تر خپل اصلي مطلب وتلي څو ټکي بیان کړم او بیا به اصلي مطلب ته وروګرځم.

د شال لرغونې مېنه د تاریخي کندهار د شروع سیمه ده. د جلال الدین محمد اکبر (۱۵۵۶ـ۱۶۰۵ع) په وختو کې شال د کندهار له توابعو څخه وو.

بایزید روښان چې د ۹۶۱ هـ ق = ۱۵۵۳ع کال په حدودو کې (دغه سنه اټکلي ده او دا هغه وخت دئ چې بایزید د کندهار له سفره راستون سوی وو) تر پنځه کاله ځیلې تېرولو وروسته له کوره دباندي راووت او د خپلو عقایدو د تبلیغ او ترویج له پاره ئې شاوخوا سیمو ته د خپلو خلیفه ګانو د لېږلو تکل وکړ، خلیفه مودود ترین ئې کندهار ته راواستاوه. خلیفه مودود کاسیانو ته راغی. د کاسیانو ټاټوبی یعني همدغه سیمه چې اوس

موږ پکښې راغونډ یو، کندهار وو. دلته ئې واردواره د کاسیانو یو ملک چې "بابو" نومېدی، خپلې لارې ته راوباله. بابو باسواده سړی وو خلیفه مودود به په کندهاریو کاسیانو کې زیاتره د "بلال"نومې په کور کې اوسېدی . بلال د خواجه عمران کندهاری روښاني خدمتګار وو او د بایزید روښان او د هغه د کورنۍ په خدمت کې به په شپه و ورځ ولاړ وو. د بلال نوم "مانک" وو خو خلیفه مودود د بلال نوم پر کښېښود او "بلال ثانی"به ئې باله. بلال د "هلال"په نامه یو زوی درلود، چې د حالنامې په قول د حال و مقام څښتن وو او لیکلي آثار ئې هم درلودل (حالنامه ـ ګستنر چاپ ـ ۳۷۲ مخ، کابل). په روښاني عصر کې د دغو کندهاریو کاسیانو مشر سکندرخان نومېدی او په شال کې اوسېدی. دی د روښان بایزید له ډېرو صادقو او زړه ورو مریدانو څخه وو. حالنامه ئې د زړه ورتیا کیسې لیکي (۳٦۳ مخ). دغه سکندرخان خپله لور تر زېږېدو دمخه د پیر له پاره نذر کړې وه چې وروسته ئې د روښان پیر لمسي د جلال الدین زوی رشیدخان ته ورکړې وه. دا نجلۍ د سکندر خان ورور سنجر نومې هندوستان ته بوتله او هورې ئې رشیدخان ته کښېنوله (د رشید خان اصلي نوم الهداد وو. دا لقب مغولي واکمن جهانګیر ورکړی وو. رشیدخان په ۱۰۵۸ هـ ق کې مړ او د شمالي هندوستان په رشیداباد کې ښخ دئ). دا مېرمن د خانصاحب رشیدخان په کورنۍ کې د ډېر عزت څښتنه وه. نوم ئې "فیروزبخته" خو لقب ئې "قندهاری محل" وو.

د روښانیانو په مریدانو او مخلصانو کې په بړېڅو کې ئې "علي خلیفه" نومی، په شینوارو کندهاریو کې ئې "خلو" نومی او خلیفه عبدالکریم (د حالنامې په روایت دا سړی هم په لیک لوست پوه او شاعر وو) او پخپله علي محمد مخلص کندهاری، په ساپیو کندهاریانو کې ئې "خانا" نومی او یو شمېر نور خپلې لارې ته راوبلل. دوی ټول د همدې سیمې اوسېدونکي ول او روښانیو ورته د کندهاریانو په سترګه کتل. حالنامه چې د روښان پیر د کندهاریو مریدانو نومونه اخلي، د زړه ورتیا صفت ئې کوي او زیاتره ورسره لیکي چې "خواننده " وو، په لیک لوست پوهېدی. له دې څخه ښکاري، چې په هغه وخت کې پر دغه سیمه باندې د سواد او لیک لوست رڼا خپره وه.

دا سیمه په فرهنګي او ژبني لحاظ د کندهار په فرهنګي حوزه کې شامله سیمه وه او ده. زموږ محققینو د کوټې فرهنګي حوزه د یوې مستقلې حوزې په توګه راپېژندلې ده. د اوسنیو سیاسي حدودو په چوکاټ کې خو به دا خبره پر ځای وي، منګر که خبره د فرهنګ په پراخه معنا او اورشو کې ولټول سي، نو دا فرهنګي حوزه د کندهار د تاریخي ژبنۍ او ادبي حوزې یوه مهمه برخه ده. د دې حوزې حدود په شمال کې د مرکزي افغانستان له هزاره جات سره نښلي، په جنوب کې پر دوکۍ باندې ختمېږي (ښاغلي عارف صاحب د سیمینار په جریان کې راته وویل چې دغه پوله تر دوکۍ نوره هم ډېره غځېږي. م. هوتک)، په لوېدیځ کې د هرات شاوخوا ته رسېږي او په ختیځ کې د غزني شاوخوا ټک دئ. د دغې پراخې حوزې لهجه په عمومیاتو کې یوه ده البته د پښتو د نورو لهجو په شان ئې په جزئیاتو کې توپیرونه سته. د پښتنو د ژوند د اجتماعي او اقتصادي انکشاف تراغېزې لاندې د دوی په لهجو کې د اولسوالیو او حتی سره نږدې کلیو پر مقیاس لا هم توپیرونه لیدل کېږي. د کوټې د پښتنو لهجه د کندهار لهجه ده. د دې

سیمي ادبي ایجادیات د کندهار د پراخي اورشو ایجادیات دي. دا چي د علامه حبو اخندزاده نیکونه او ورنیکونه له دې ځایه د کندهار ښار ته تللي او هورې ئې د تدریس حلقې ایجاد کړې وې، دا چي پیرمحمد کاکړ له دې ځایه ولاړ او د احمدشاهي دربار اراکینو ته ئې پښتو ور زده کوله، دا چي د میا عبدالحکیم صاحب خلوت هلته او مزار دلته دئ، دا چي د اروابناد عبدالعلي اخندزاده اشعار د ارغنداو په باغو کي زمزمه کېدل ـ دا چي پروفیسر سیال کاکړ صاحب ته کندهار کوڅه په کوڅه ورمعلوم دئ، علماء، ادیبان، مخور، روحانیون او نور فضلاء ئې ټول پېژني ـ دا چي د اروابناد ملا جانان کاکړ آثار دلته د ښاغلي ډاکټر رفیقي په همت خپرېږي ـ دا چي د میرزاحنان بارکزي او عبدالرحیم هوتک دېوانونه دلته د چاپ له پاره آماده کېږي ـ دا ټول پر دې خبره دلالت کوي چي دا سیمه د کندهار له ادبي حوزې سره خورا مضبوط اړیکي لري.

زما د خپل نیکه حاجي محمد اکبر هوتک یو کور د کندهار ښار په ملا گلداد کوڅه کي وو او بل ئې دلته په کاسیانو کي. یوه کتابخانه ئې هلته په کندهار کي وه او بله ئې دلته. په هغه کتابتون کي ئې د خوشحال خان دېوان ساتلی وو او په دې کتابخانه کي ئې د پټي خزانې نسخه. زه به ډېر خوښ سم چي که د دغه سیمینار په یوه وقفه (برېک) کي یا د سیمینار تر غونډو دباندي د دوستانو په یوه خصوصي بانډار کي په کوټه کي د حاجي محمداکبر هوتک د ژوند ځیني ناویلي خبري له دوستانوسره شریکي کاندم).

ښه! دا خو عمومیات ول او د سیمینار له موضوع سره اړخکي خبري وې. راځم، اصلي خبرو ته.

بشریت په یوویشتمه پېړۍ کي گام ایښی دئ او موږ پښتانه هم د دغې پېړۍ له غوښتنو او چلینجونو سره چار ناچار مخامخ یو. که ځانونه ورسره عیار نه کاندو او غافله واوسو، له دغه ستر بشري کاروان څخه وروسته پاتېږو. لکه هر وخت چي پاته سوي یو. زه د دې لوی سیمینار د وخت او حوصلې په پام کي نیولو سره غواړم د هغو چلینجو پر یوه پېڅکه باندي وړغېږم چي پښتو ژبه ورسره مخامخ ده.

په دې کي هیڅ شک نسته چي پښتون لرغونی قام دئ. دی چي لرغونی وي، نو ژبه خو ئې هم ورسره لرغونې ده. که لرغونتوب د یوه قام او ژبې د بقاء او پرمختگ له پاره کافي وي، نو موږ پښتانه دا ویاړ لرو. خو پر ځنگ ئې دا واقعیت هم د لمرپه شان روښانه دئ چي د دغه لرغوني قام لرغونې ژبه اوس د نړۍ له خوارو او اسکېرلو ژبو څخه شمېرل کېږي. نه ئې د لیکدود مانۍ پر پخه درېدلې ده او نه ئې علمي زېرمه دونده (دومره) ده چي موږ دي د نورو ژبو له احتیاجه څخه وساتي. کله چي مو د علم کتاب ته اړتیا پیدا سي، د نورو ژبو او قامونو دروازې ور ټکوو. په دغه خوار او اسکېرلي حالت کي یوویشتمه پېړۍ راباندي راورسېده او موږ ئې د نورو چلنجونو پر ځنگ له دوو غټو چلنجوسره مخامخ کړي یو.

ــ د اوسنی زمانې د علمي، تخنیکي، اقتصادي، سیاسي او ټولنیزو پرمختیاوو له اسیته د نوو مفاهمو، لغاتو او اصطلاحاتو سېلاب.

ـ د دغه سېلاب په مقابل کي زموږ نه آمادگي او د لازمو وسایلو نستوالی.

په لازمو وسایلو کي علمي او ژبني مرکزونه راتلای سي چي له بده مرغه موږ ئې لکه څنگه چي باید وای، هغسي ئې نه لرو. زه د افغانستان خبري کوم. هلته د تېرو څلوېښتو کالو بدمرغیو

له اسيته زموږ علمي مرکزونه او د هغو پرسونل په هيڅ ډول له دغه سيلاب سره د ډغرو توان نه لري. د کابل پوهنتون د ادبياتو پوهنځي پښتو څانګه چي يو وخت د پياوړو استادانو په حساب د ټول پوهنتون سترګه ور اوښتله، اوس د يوې لېسې په ظرفيت لا هم نه امکانات لري او نه ورته د مقاماتو له خوا لازمه پاملرنه کېږي.

محتاجه، سرګردانه، لالهانده، وږی تږی
نه لاس د مرستي سته ،نه اراده د مرستندويو

د دې پرځای چي زموږ علمي مرکزونه د زمانې غوښتنو ته جوابونه ومومي، د خپلي بقاء له پاره لاس و پښې وهي. نو له نه وسه، اوس له دغه ستر سېلاب سره په مقابله کي فردي هڅي روانې دي. دا افراد دي چي لغاتونه جوړوي، افراد دي چي کتابونه خپروي، افراد دي چي ژباړي کوي، ځانته تحقيقاتي براجيکټونه ټاکي او په يوه جمله کي چي ئې را خلاصه کړو، افراد دي چي د دغې ماتې بېړۍ د ژغورني چارو ته ئې اوږه ورکړې ده. د پښتانه په شان د مرګي په خوب بيده قام کي چي داسي خواخوږي پيدا سي، نو چا ته ډاډ ورکوي چي که له مخه يو مخ راپاڅېدلی نه دئ، يو څه ښور خو ئې هرومرو خوړلی دئ. دا ئې د اميد خبري دي. خو دا چي بيا هر صلاحيت لرونکی او بې صلاحيته د کمپيوټري او انټرنيټي اسانتياوو له برکته له ځانو څخه د لغاتو ماشينونه جوړ کړي دي. درګرده توليدات راباسي او پسې خپروي ئې. نه د چا پر چيغو غوږ نيول کېږي او نه له څو محدودو کسانو پرته چا ته د نظر ورکولو اجازه ورکول کېږي. نو د دې خپلسرۍ نتيجه خو به هرو مرو همداسي وي لکه تاسي چي ئې وينئ او لولئ ئې چي د کورنيو او دباندنيو نشراتو ژبه په څونده (څومره) اندازه بېخونده سوې او د اولس له ژبې څخه څونده ليري سوې ده؟ د خواشينۍ ځای پکښې بل دا دئ چي دغه بېخونده ژبه نه واحد ليکدود لري، او نه واحد ليکدود له پاره ټولمنلی لارښود.

د پښتو ليکدود د يووالي له پاره منظمي هلي ځلي له ۱۳۲۱ ش = ۱۹۴۲ع څخه راپيل سوي دي. وروستۍ فيصله ئې د باړه ګلۍ فيصله ده چي زما په نظر له ځينو ډېرو جزئي خبرو پرته نور بالکل مناسبه فيصله ده. خو له بده مرغه هغه کسان ئې لا هم په جدي توګه نه عملي کوي چي پر فيصله ئې لاسليکونه سته. په دې ۷۳ کلو کي موږ د الفبې پر يووالي باندي بريالي سوي نه يو. موږ تر اوسه دا خبره فيصله کړې نه ده چي (دوه ښځي) وليکو، که (دوې ښځي)؟ (په آس سپور وليکو) که (پر آس سپور)؟.... دا ولي؟ آيا موږ دونده بې پروا قوم يو چي په ۷۳ کالو کي مو دا يوه موضوع لا هم حل نه کړای سوای؟ دا ډېره جدي پوښتنه ده. په سرسري جواب ئې بايد ځان ته قناعت ور نه کړو. په دې بايد ځان و نه غولوو چي پلانی ئې نه عملي کوي. احمد خنډ پکښې اچوي، محمود ستونزي پېښوي، د پلانۍ لهجې ويونکي ئې نه مني او د پيستانۍ لهجې ويونکي ئې په غم کي نه دي!

دا سطحي جوابونه دي چي موږ ئې د دغي اساسي پوښتني پر سر ځانته قناعت په ورکوو. دا د دغي اساسي پوښتني اساسي جواب نه دئ. هسي مو ځانونه په خطاايستلي دي. دا چي په ۷۳ کاله کي موږ د دغي مسئلې پر هر اړخيز حل بريالي سوي نه يو، هغه د انګرېزي ژبو خبره

(something is wrong). زما په قاصر فکر د دې بنستي پوښتني جواب يو نه دئ، بلکي څو عواملو لاس سره ورکړی دئ او په نتيجه کي ئې ستونزه لاينحله پاته کړې ده. دا عوامل د پښتنو پخپل وجود کي دننه پراته دي. د پښتنو د ټولنيز انکشاف له جريان سره تړلي دي. د پښتنو په قبيلويت کي ئې ريښه پټه ده. سياست اغېزه پر کړې ده او تر ټولو بنيادي خبره دا ده چي هغه د عوامو په ژبه "هلک مړاني نه دئ وهلی، موږ کوزده ورکوو او د اولاد هيله لا هم ځني لرو". له بده مرغه پښتو ژبه او پښتانه د خپل تکاملي سير له مخي دغي درجې ته نه دي رسېدلي چي د ژبي او ليکدود د معياريت مسئله دي په بشپړه توګه حل کاندي. موږ تر هغه دمخه نوري انبوهی ستونزي پرتې دي چي حل راځخه غواړي. اول راته د قوم د تعليم او ليک لوست مسئله پرته ده. د خپلي بقا او فنا موضوع راته پرته ده. (زه د افغانستان خبري درته کوم. موږ د تاريخ په اوږدوکي څو واره دغه راز تر وخت دمخه ټوپونه وهلي خو هر وار مو داسي واری پر مغزي خوړلی دئ چي خوله ئې له خاورو راډکه کړې ده. تر هر وار وروسته چي موږ بيرته راپورته سوي يو، خاوري مو له ځانو ځخه څنډلي دي، شاوخوا مو کتلي دي، ګورو چي پنځوس کاله راباندي تېر سوي دي!)

فيصلې مو کړي دي خو په بشپړه توګه عملي سوي نه دي. د دغو فيصلو د نه عملي کېدلو يو عامل بيا زما په قاصر فکر پخپله د فيصلو په دننه کي پروت دئ. دغه عامل ته که د فيصلو د نيمګړتيا نوم ورکړو، هم به مو بنايي ډېره غلطي نه وي کړې. د دغو فيصلو دا لاندي ټکوته زما پاملرنه ور اوښتې ده:

– په اکثريت او اقليت د مسئلې حلول!

(لس تنه د يوې لهجې ويونکي که لس لاسونه پورته کاندي، دا ټول د يوه لاس حيثيت لري...).

– د ليکدود او تلفظ پوله سره ګډول (دا چي په "ږغ" او "غږ" کي کم يو وليکو، دا د تلفظ مسئله ده. د ليکدود اړخ ئې دا دئ چي "غګ" وليکو که "غږ"؟نور مثالونه کېناستل، کښېناستل -ږيره او ګيره - کې او کښې ...).

– په فيصلو کي کليات راغلي وي، د جزئياتو د تفسير له پاره سم لاربنود نسته.

– په فيصلو کي له عاطفي چلن ځخه کار اخيستل سوی دئ. (پلانی خپه نه سي) ژبني مسايل بايد د ژبنيو پرنسيبو له مخي وڅېړل سي نه د عاطفي او اخلاقي روش پر بنياد.

– په فيصلو کي په ناآګاهانه توګه د لغاتو د وژلو لاره غوره سوې ده. د مثال په توګه:

رومي بانجن، ټماټر، روميان. په دې کي يو ستندرډ بلل او نور ايسته غورځول (په انګرېزي کي د " electricity" او " hydro" لغاتونه).

البته (لمسی او نمسی) کي کولای سو چي يو غوره وبولو.

– پښتو الفبې د ټولو آوازونو د تمثيل دنده په بشپړه توګه نه سي تر سره کولای.

– د ژبې د پرمختګ معادله په اول ګام کي چپه تړلې ده او هغه دا چي د ژبې د پرمختګ مسئله مو د قوم تر پرمختګ مقدمه ګڼلې ده. موږ فکر کوو چي د ژبې له پرمختګ سره قوم هم پر مخ ځي. په داسي حال چي د

قوم له پرمختګ سره ژبه هم پر مخ ځي. هغه قومونه چې په اقتصادي، سیاسي، کلتوري او علمي لحاظ پر مخ تللي وي، ژبې ئې ورسره سمې پرمختللې وي. داسې قوم په دنیاکې نسته چې دی دې پخپله د ټولنیزې پرمختیا له مخې په ټاټرین کې وي او ژبه دې ئې پرمخ تللې وي! قوم دې په سلو کې دوه باسواده وي او ژبه دې د دنیا د پرمختللیو ژبو په کتار کې ودرېږي.

د دغې چپه معادلې د حل له پاره مو سملاسي چاره دا موندلې ده چې ژبه باید د پردیو ژبو له لغاتو څخه پاکه کړو. زموږ په نظر د پښتو د نه پرمختیا عامل پردي لغاتونه دي. که دا لغاتونه له ژبې وایستل سي، ژبه پر مخ ځي. دغه غیرعلمي او غیرعملي فارمول مو پر زړه داسې کښېنستلی دئ چې نوري ټولې چارې راڅخه پاته سوي دي او په ناآګاهانه توګه مو د ژبې د سوچه کېدو (Purism) پر ناممکنه لار باندې د پښو نوکان ایستلي دي. داسې لار چې نه د ژبې د ارتقاء هدف ته وتلې ده او نه ئې پای راته معلوم دئ.

موږ له دې حقیقته څخه ګویا انکار کوو چې که سوچه توب د ژبې د پرمختګ او بډایې شرط وای، نو اردو ژبې به اوس د زکندن سلګۍ وهلای. خو خبره بالکل سرچپه ده. اردو ژبه نه دا چې مړه سوې نه ده، بلکي له ټول ګډوله توب سره مخ پر لوړه روانه ده او د نړۍ په هر ګوټ کي ئې هم نوم سته، هم نښان. د نړۍ داسې کتابتون نسته چې د دغې ژبې د کتابو غټ سیکشن دي و نه لري. دا ولې؟ عوامل خو به ئې ډېر وي، خو یو لوی عامل ئې دا دئ چې د دې ژبې ویونکي مخ پر بره روان دي. ژبه ئې ورسره سمه پر مخ روانه ده.

ښه! موږ هم د دنیا پر مخ د یوه اوسېدونکي قوم په توګه بېکاره او لاس تر زنه کښېنستلای نه سو. په خپل قام کې به د پوهنې د رڼا پر عامولو ټینګار کوو او په څنګ کې به ئې په دې اوسنیو نیمګړو وسایلو سره دا خپله ماته بېړۍ د ساحل لوري ته کشوو.

سمدلاسه به د همدغه موجود لیکدود په مرسته خپلو هڅو ته دوام ورکوو.

زما په فکر اوس د دې وخت رارسېدلی دئ چې د پښتو لغوي زېرمه کلمه په کلمه، لغت په لغت، ویی په ویي، توری په توري تر غلبېل ووزي. په فیصلو سره دا ټول حلېدلای نه سي.

د پښتو په لیکدود کې له یو دوو درو تورو پرته (پرته یاء، همزه داره هـ) نور پر ټوله الفبې باندې د کاغذ پرمخ اتفاق راغلی دئ او راځئ چې له همدغه نسبي اتفاق څخه اعظمي ګټه واخلو.

د لیکدود د یووالي له پاره لویه اړتیا اوس د یوه مکمل او پر نوو اصولو برابر قاموس تهیه کول دي. دا که تاسې قاموس بولئ او که بل څه خو توپیر به ئې له موجودو لیکل سوو قاموسو او لارښودو څخه دا وي چې اول خو به په دې قاموس کي له استثنا پرته ټول لغات راغونډ سوي وي. او بل به ئې په فونیمیک الفبې تلفظونه هم ورسره لیکل سوي وي. سمېل به ئې د پوهاند زیار صاحب پښتو سیندګی وي په دې کار سره به لیکونکی له هغې ستونزې څخه خلاص سوی وي چې د لیکني پر وخت د لغت د املاء په برخه کي ورسره مخامخ وي او بل به د هغه اپت مخه په نیول سوې وي چې نن ورځ ئې ټوله پښتني اورشو نیولې ده او د معیارپه نامه د

لهجو خورې او ښکلي کلمې له ليکنې څخه په قصدي توګه ايستل کېږي او پسې وژل کېږي. (د لغاتو په جوړونه کې مور د فارسي دنباله روي کوو. څلورلاري، چوک ...) ما پخپل کتاب (پرمعياري ژبه د معيار په ژبه يوه څېړنه" (۱۱۸ مخ) کې د دغو وژل سوو لغتونو څو مثالونه داسې راوړي دي: "زما د مشاهدې له مخې موږ په تېرو دوو درو لسيزو کې (بډای) او (موږ) لغات په (شتمن) باندې تري تم کړل، (يرغل) مو په (بريد) له منځه يووړ، (ايلچي) مو په (استازي) ورک کړ، (جنګ) مو په (جګړه) وواهه، (وطن) مو په (هيواد) نېستي کړ، (غولی) مو په (انګړ) پايمال کړ، (تاداو) مو په (بنسټ) له بېخه وکيښ، (ربړه) مو په (ستونزه) پسې واخيستله، (ليکه) مو په (کرښه) پاکه کړه، (کوچنيواله) مو په (ورکتوب) ووژله، (جنګيالی) مو په (جګړه مار) ښخ کړ، (اخته)، (بوخت) او (مشغول) مو په (لګيا) اليش کړل، (تلاښ) مو په (هڅه) نفي کړ، (کړنه) مو په (غندنه) محوه کړه، (نجلۍ) مو په (جنۍ) تر پښو لاندې کړه، (کرار) مو په (ورو) وخوړ، (په) مو د (پر) په فتوا مسخه کړاو..."

په پښتو کې چې تر ننه پورې کوم قاموسونه ليکل سوي دي، هغه ټول زموږ علمي پانګه ده او د ليکونکيو قدرداني ئې زموږ ايماني وجيبه ده. په دې پېشنهاد سوي قاموس کې بايد د پښتو د ټولو ليکل سوو قاموسو مواد راغونډ سوي وي. په ترتيبولو کې دې د انګرېزي ژبې قاموسونه په پام کې ونيول سي. په انګرېزي ژبو قاموسو کې د مثال په توګه (exercize) او (exercise) دواړه رااخيستل سوي دي. يوه ته ئې (uk) او بل ته (us) ليکلی وي. (colour) او (color) ئې دواړه رااخيستی وي. يوه ته ئې (uk) وي او بل ته (us). موږ هم کولای سو چې د مثال په توګه (غږ) او (ږغ) دواړه راوړو. يوه ته (خ) او بل ته (ل) وليکو چې مراد به مو ختيځه او لوېديځه لهجه وي. يا دې يوه بله نخښنه ورته وټاکل سي. لکه د انګرېزي ژبې په سټنډرډ کېدلو کې چې اکسفورډ ډيکشنرۍ اساسي رول ولوباوه، زموږ دغه نوی قاموس يا لارښود به هم د پښتو ژبو له پاره د مراجعې يو پياوړی ماخذ وګرځي. دا قاموس بايد د افغانستان او پښتونخوا او بلوچستان د ټولو عمده اکاډميو او پوهنتونو په ګډه همکاري برابر سي او له ننني انټرنيټي امکاناتو څخه په کار اخيستلو سره به د تدوين ډله که څه هم پر يوه مېز سره ناسته نه وي، خو په يوه کليک سره خپل نظرونه او کارونه يو بل ته استولای سي. د برابرېدلو پراجيکټ دې همدا اوس پيل سي، دا چې په څو کاله کې ئې بشپړولای سو، هغه بيا بېله خبره ده. له خدايه به توفيق غواړو چې ژر ئې بشپړ کړو.

زما دغه پېشنهاد سوی قاموس به د پښتو ژبې د ټولو لغاتو (چې شمېر ئې دوو لکو ته نه رسېږي) د ليکدود او تلفظ له پاره يو لارښود سي. په هرو څو کلونو کې به د مالي امکاناتو په چوکاټ کې اپډېټ کېږي. د خپرېدو حقوق دې هم مشترک وي او د ګډې جرګه ګۍ مشوره دې پکښې شرط وي.

پای

# هنر او ادب

**چلوونکی: پردېس کندهاري**

عبدالهادي ملا

## غزل

وخته څه درنه بلا سوې، نه سهېږې نه تېرېږي
ګرانه وينې خوب د سحر سوې، نه مې يادسې نه هېرېږې

پيالې څومرې بېوفا يې، ټوله شپه يې شونډې وخورې
سهار مست خراب چپه سي، ته د بل لاس کې نڅېږې

د جانان د کور ګلۍ ده، هره خوا ښايسته تېرېږي
بوالهوس نظره پام که، بد و نه ګورې رندېږې
د شهرت خاوره ښر نه، د شهوت پوله شګلنه
يه د عشق اسماني ګله، دلته نه لګې رژېږې
درتلای نسم ګران جنونه، زه ترلی په رشتو يم
اسره ګر عقل مي وايي، لمر لوېده دي نه رسېږې
مينه ټول خودغرضي ده، ګيله شنه بېوقوفي ده
که زه ستا رنګي ښايسته سم، ته به هم له ما خوځېږې

يه کپر کپر تنديه، د دښمن هوډ ته اغزيه
ضد دي جبل کوي پښتون دئ، مات خو مات يې لا جنګېږې

تشنه لب که دريانوش يې، ته راوستی کوم مدهوش يې
شپه پخه سوه څم ويده سو، لا يې غوارې نه اوبېږې

عبدالهادي ملا

## غزل

وخت چي کوټلم ډېر ښو ته يې کجل کړمه
سر پر سر پرهر د ژوند د شونډو د رنګ مل کړمه

ته د غروب کرښه د شفق غېږې ته وختې
زه د سحر سترګه دي د شپې په پښو کي دل کړمه

دی وايي د ژوند سفر ډېر ستړی څوربدلی دئ
زه وايم د مرګ خبر د لارې د سر پَل کړمه
خلق وايي حالات نازک د ځان ساتنه فرض ګڼه
زه وايم بلوا، تالان! چي پېښه په اوربل کړمه
چرته چي ښکلا وي بار، زه ډاکې ته لار ګورم
دا د تور پېکي سودا، په سپينه ږيره غل کړمه

دوی ويل د شپې په وار شهي راخي زموږ کلي ته
ما وې د وجود دړه شړشم به ورته بل کړمه

خان ويل يه پروت ملا د غسره د سر هوسۍ غوارم
ما ويل حاضر سرکار! په څغاسته به ځان شل کړمه

صدیق الله مین/کوټه

## غزل

بې غمه له غمونو ومه غم راسره نه وو
ماشوم وم نازولی شی به کم راسره نه وو
زمابه په بېلتون کې زړه په دې خبره ښه وو
که ته راسره نه وې رقیب هم راسره نه وو
یو کار په داسې زور وو چې زما زور ورته هیڅ وو
توپک به مې اوږه کې وو قلم راسره نه وو
دژوندپه مانا پوه خلګو له ژوند څخه خوندواخیست
موږ پوه د ژوند په راز نه وو ژوند سم راسره نه وو
د سترګو تور مینه! کله کله به مې سپین شوه
هغه چې وو زما د چا چې وم راسره نه وو

فدامحمد اقبال

## غزل

په لیکلو کتابو مې دې قسم وي
ستا په کړو قسمو مې دې قسم وي
څڅېدله به کوټه خو وس مې نه وو
د باران په اوربدو مې دې قسم وي
که دوږخ ته ځې بیا هم درپسې ځمه
د جنت په منارو مې دې قسم وي
یو پر زړه او بل پر سترګو باندې ږدمه
ستا په مستو قدمو مې دې قسم وي
نور تر دې به مې لا بله خوبنې څه وي
دا ستا زړه ته په ورتلو مې دې قسم وي
سپین قرآن باندې مې دوه لاسونه ایښې
د اقبال په ښکلېدو مې دې قسم وي

رحمت کټوازی

## غزل

ستا د اوښلنو سترګو یاد مې زړه کې غم جوړوي
سلګۍ مې غیر ارادي سترګو کې نم جوړوي
چې د چا یاد دې د زړه تل ته کوز سي بیانو والله
سړی له هره کاره باسي، سړی سم جوړوي

د دې تور زړو له اخلاص څخه څه تمه مه کړه
دوی خو تل زموږ کلي ته راسي او ماتم جوړوي

د پښتنو سیمه کې چیرته رنځورپال نشته دئ
داسې څوک نشته چې یې زخم ته ملهم جوړوي

نور خو مو ډېرې لارې ډېر ډولونه وازمایل
فکر کوم، چې دا ټولنه تنها زغم جوړوي

چې یو بل وزغمو د بل په پرمختګ خوشحال سو
دغه تګلاره مو پر سمه لاره سم جوړوي

په دې نړۍ کې ربه داډول وګړي هم سته
پر دې دنیا باندې پر خلکو جهنم جوړوي
لېونی سوی دئ رحمت، ټوپک له خلکو اخلې!
ماشې ته جوړې ګوتې څنګه په قلم جوړوي

درخانۍ

چاویل چې
ته لیرې یې له ما
لیرې خو هغه دئ
چې په زړه کې نه دئ

اجمل ښکلی / کابل

## غزل

اوس خو زه هم راته ته يې ته يې ته يې
اوس خو هري خوا ته ته يې ته يې ته يې
نه هوا يې، نه اوبه يې، نه خواږه يې
خو ضرور مي سا ته ته يې ته يې ته يې
بيا دي توري بلاګاني راپسې وي
چي ولاړ مي شا ته ته يې ته يې ته يې
راته وايي، زه خو ګل ته يم، چي خاندم
خو بارانه چا ته ته يې ته يې ته يې
د تيارو له ذاته زه يم، زه يم، زه يم
د روڼا له ذاته ته يې ته يې ته يې

زمانې ته به فرهاد وي يا مومن وي
خو اجمله، ما ته ته يې ته يې ته يې

عصمت زهير / کوټه

## غزل

ژوند مسخرې را پورې وکړې بادوي مي زهير
تنګ چاپېريال بې سُر سرونه ځوروي مي زهير

د سپينو سرو په ټول تلي د محبتونو جذبې
کډه پر سر له دې هيواده باروي مي زهير
د همسفر سلوک په برخه مي ځيرلی زړه کړو
هغه په نه څه خرڅوي مي ، هېروي مي زهير
ورتلل محفل ته بې توهين وي ببر سر د ملنګ
پخواني تللي خلګ وايي يادوي مي زهير
د زړه په وينو دا روزلی نيال سمسور به مي سي
د هيواد غرو کي د کرسمس وني کري مي زهير

د جماعت غاړي ميکدې سوې وسواسونه مينځو
په ډوکلي يو د فکرونو رنځوي مي زهير

الهام الدين قيام

## څنګ پر څنګ

پراته دي دلته څنګ پر څنګ جومات او ميخانه
ساقي او ملا نه دي پخپل منځ کي بېګانه

ساقي په ميخانه او ملا خپل جومات کي خوښ دئ
دوی پالي پخپل منځ کي په څرګنده يارانه
بيګاه مي محتسب د ميخانې په کونج کي وليد
په يوه لاس کي تسپې وې په بل لاس کي پيمانه
شيخان د ميخانې محفل ته روغ او رمټ راغلل
شببه وتلې نه وه چي هر يو سو ديوانه
مُطرب هم پخپل ساز کي ورته پوست راګ رغولو
شيخان لکه رندان نڅېدل واړه مستانه
ملاصاحب له ليري د هر څه په ننداره وو
خو جوړه يې هيڅ نه کړه کوم تکفيرته بهانه

قيامه دلته رنګارنګ مخلوق داسي اوسېږي
چي ژوند کوي ټول څنګ پر څنګ په مينه دوستانه

پروين ملال

## غزل

د خپل ځان نه ننوتې يم وجود ته
سر مي ايښې دي و هغه ته، سجود ته
د بنګړو شور مي د ښار په شور کي ورک کړ
په قمار د ژوند مي بايلوی و سود ته
ستا آواز مي لا اوس هم غوږ ته را رسي
دغه خيال د کوم مکانه را ځي (بود) ته؟
ستا د غم سره زما د نکاح مهر
په لاسليک کي د خوښيو لفظ (نابود) ته
د چا زړه د پرهرونو هديره سوه
چي ټک، ټک د تسپو غبېره ورې (درود) ته

د ومان نیازي دوې غزلې

## غزل

پر څادر مې د څرمنې سیورې ناست دئ
ونه نشته خو د ونې سیورې ناست دئ

د دې تار په خوب کې پټ زخم روان دئ
پر دې تار د کومې ستنې سیورې ناست دئ
دغه لاره ما په سترګو ده څکلې
پر دې لار د سرې لمنې سیورې ناست دئ
د کوم ښار چیغو هوا ککړه کړې
پر هر بام یې د چاودنې سیورې ناست دئ

دا ملنګ د بې خودۍ سجدې ته ووت
پر خاطر یې ستا د زنې سیورې ناست دئ

## غزل

بله کړې مې لا نه وه، ډېوه مړه وه
له خپل ځان سره مې شپه وه، ډېوه مړه وه

پر خپل لاس مې وو سر ایښی تر سهاره
د ساړه دېوال تکیه وه، ډېوه مړه وه
سبایې چې نور وجود ته ور روان وم
توره خښته، راسره وه، ډېوه مړه وه
لکه څاڅکی زه پر خپلو اوږو راغلم
جنازه مې راسره وه، ډېوه مړه وه

بل ماښام به بل څراغ ته لټوو ستن
د سپوږمۍ اراده نه وه، ډېوه مړه وه

سیف الرحمان سلیم

## غزل

هم ښایست دئ هم نغمې دي هم نشې دي
څومره ژر چې تیارې زیاتې شي نو ښې دي

میکدو پله یې بوزئ چې سیل وکړي
دا ځوانۍ مو د څو ورځو مېلمنې دي

ستا له شونډو یې غلا وکړه چې موسکۍ شوې
دا ورې، ورې کلۍ خو پخې غلې دي

ډېرخواره، خواره مین مې پرې خفه شول
دا رښتیا خبري چا ویل چې ښې دي

پاکه مینه یې زما کړله بدنامه
لاس د چا په خوله زه کښېږدم ډېري خولې دي

کوم انصاف دئ چې ګمراه وایې ته ما ته
زه خو سم یم خو د ژوند لارې کږې دي

یوه توبه ده چې بس تل رانه هېرېږي
ګنې یادې زما ټولې میکدې دي

چې رقیب مخې له راشي نو پر شا شي
زما اوښکې ډېرې غټې پښتنې دي

د خیالونو د باغچې راسره غم دئ
ګیرچاپېره مې ملګرو سرې لمبې دي

محمدهارون خپل شعشعي/لندن

# د سنسکريت او پښتو مشترک رغۀنه

**له پښتو سره د سنسکريت او ځينو هندو- آريايي ژبۀ د مشترکو رغو مقايسه يي شننه**

**۳) ए :**

د سنسکريت او زياترو هندو-آريايي ژبۀ په فونيټکۀ الفباۀ کښي د ( ې ) دا رغ د ( e ) يا (ē ) په توري افاده سوئ دئ. دا ښورن يا واول رغ هم د سنسکريت او هندي نورو ښورنۀ رغو غۀندي په سېلابي او سېلابمنځي حالت کښي بېل بېل شکلونه لري:

الف) يوازي يا سېلابي بڼه (syllabic form):

| پښتو مانا | تلفظ | سنسکريت/هندي ټکی |
|---|---|---|
| يۀ، يوازي، منفرد. | Ē'ka/ ek | एक |
| اۀ، دغه راز، دغسي. | ē'vaṁ/ e'vaṅ | एवं |
| گوښی، منزوي، خلوتي. | ē'kān'ta/ e'kānt | एकान्त |

ب) سېلابمنځي يا ترلې بڼه (intra-syllabic form):

| پښتو مانا | تلفظ | سنسکريت/ هندي ټکی |
|---|---|---|
| ۱- مشر لېور. ۲- د هندۀ تقويم دريمه مياشت، چي د عيسايي تقويم د مي - جون له مياشتي سره سمۀن لري. | jeṭh | जेठ |
| ۱- دايره، کړی، احاطه.۲- محاصره کول، چارچاپېر کول. | ghe'rā | घेरा |
| بازي، لوبه، ساتېری، تفريح. | khel | खेल |

د ( ې ) دا ډول رغ د پښتو ژبپوهانو په اصطلاح د مجهولي يا اوږدې ( ې ) په نامه يادېږي، چي په پښتو ليکدود کښي تر ( ی ) لاندي د دوو سر پر سر ټکۀ په ايښوولۀ سره افاده کيږي. د کليمې په سر يا سېلابي حالت کښي د ( ې ) او په سېلابمنځي يا گډ حالت کښي د ( ېـ ) بڼه لري. د ( ې ) دا رغ د سنسکريت او هندي په شان د پښتو په فونتيکه الفبې کښي هم د(e) په توري افاده کيږي.

شبدې، مستې، وسلې، پلمې، کیسې، هبر، تبر، ډېر، مېخ، تېغ، ابغ، اېل او داسي نور يې په پښتو کښي ځيني مثالونه دي.

په دې ترتيب، د مجهولي يا اوږدې (ې) ږغ په سنسکريت او پښتو کښي له هره اړخه (په ليکلو او ويلو دواړو کښي) کوږَټ يو راز دئ؛ خو لکه څنگه چي وړاندي اشاره وسوه، دغه ږغ په ايراني پاړسي کښي له خورا ډېره وخته نست سوئ دئ. له دې اسيته نو اوس شير (شيدې) او شېر (زمری) نه يوازي يو راز کاږي، بلکي يو راز يې وايي هم. ياني د بېلي املاء او بېل تلفظ دوه ټکي (heterophones) يې په کاملاً همشکله او همږغه ټکو (homonyms) اړولي دي. په دري کښي لا تر اوسه دا او داسي نور ټکي (چي د ريښې او مانا له پلوه بېخي بېل دي) د دوو جلا ټکو په توگه تلفظ کيږي، خو په ليکدود کښې د مجهولي (ې) د نه لرلو په وجه کاملاً يو ډَوَل کاږي. څرنگه چي د يوې ژبي د اصالت او قدامت خوندي کولو تر ټولو ارزښتناکه او اساسي وسيله د هغې ژبي رسم الخط يا ليکدود دئ، ځکه نو هغي روځي ليري نه دي، چي په دري کښي به هم د مجهولي او معرؤفي (ياء) دا شفاهي بېلوالی تل تر تله ورک سي؛ په دې چي په دري ليکدود کښي هم د ايرانيانو په شان د (ياء) بېلابېل ږغؤنه په يوه توري افاده کيږي. په بله وينا، په دري ليکدود کښي هم وخره، اؤښ او غويي ته په يوه سترگه کتل کيږي.

۴) ऐ:

په سنسکريت او هندو–آريايي ژبؤ کښي د (ياء) دا ډَوَل عموماً د (ai) په رومي تورو افاده کيږي، خو د هندي په مختلفو لهجو کښي د يوه نه بدلېدؤنکي واول يا ښورن ږغ (monophthong) او دوو بدلېدؤنکؤ ښورنو ږغو (diphthong) په دواړو شکلو باب دئ. (ऐ) د سنسکريت – هندي نورو ښورنؤ ږغو غؤندي په سېلابي او سېلابمنځي حالت کښي بېل بېل شکلونه لري:

الف) سېلابي يا يوازي بڼه (syllabic form):

| پښتو مانا | تلفظ | سنسکريت/ هندي ټکی |
|---|---|---|
| ١– خارق العاده قدرت، لويي، عظمت. ٢– بخت، طالع. | aiś'var'ya | ऐश्वर्य |
| يؤوالي، وحدت، يگانگي. | aik'ya/ ek'ya | ऐक्य / एक्य |
| داسي، دغسي، دغه راز، په دې ډَوَل. | ai'sā | ऐसा |

ب) سېلابمنځي يا مختلطه بڼه (intra-syllabic form):

| پښتو مانا | تلفظ | سنسکريت/هندي ټکی |
|---|---|---|

| | | |
|---|---|---|
| तैल /तेल | tail/ tel | تېل، غوړي. |
| दैव | dai'va | قسمت، نصيب، تقدير. |
| पैसा | pai'sā | ۱) د ميسو سکه ( د روپۍ سلمه ). ۲) پيسې، شتمني. |

د ( ياء ) دغسي ږغ په پښتو او پارسي کښي هم په کټ مټ دغه بڼه خوندي دئ: غير، غيرت، خير، خيرات، سير، فير، حيوان، شيطان، پيمان، کيهان، کيوان، نيسان، نيستان، نينواز او داسي نور يې په دواړو ژبو کښي ځيني نمونې دي. د يادوَني وړ ده، چي د پښتو د جنوب – ختيځي لهجې ځيني ويونکي، په تېره بيا د شمالي پښتونخوا زياتره اوسېدوَنکي د ( ياء ) دغه ږغ په مجهوله يا اوږده ( ې ) اليشيي. مانا دا چي غير، خير، خيرات، حيوان او داسي نور د غېر، خېر، خېرات، حېوان او داسي نورو په بڼه وايي. په نورو پښتنو کښي دا ږغ له سنسکريت او نورو هندو – آريايي ژبو سره هيڅ توپير نه لري.

۵) य:

په سنسکريت او ځينو نورو هندو – آريايي ژبو کښي د ( ياء ) دا ښورن وزمه ږغ له انګرېزي ( y ) سره همرنګي لري، خو په ويلو کښي تر هغه لا ډېر سپک او پوست ادا کېږي، په تېره بيا کله چي د ښلابېلو ټکوُ په منځ کښي کار سوئ يي. د ښورنو ږغو پر خلاف، دا شبه واول ږغ په سېلابي او سېلابمنځي دواړو حالتو کښي يوه بڼه لري. ځو مثالوُنه يې په دې ډَوَل دي:

| سنسکريت/ هندي ټکی | تلفظ | پښتو مانا |
|---|---|---|
| युद्ध | yuddh | جنګ، جګړه، حرب. |
| यात्रा | yāt'rā | ۱ – سفر، مسافرت. ۲ – دَوْرَه، سير و سياحت. |
| योजना | yoj'nā | نخشه، پلان، پروګرام، منصوْبَه. |

د ( ياء ) دا واول وزمه ږغ په سنسکريت او پښتو کښي هيڅ پَرک نه لري: يقين، بايد، شايد، ياني ( يعني )، يار، ياوَر، يهوْد، يثرب، يمن، ياقوْت، ياد، يادګار، ياسين، ياسر، يزيد، يما او داسي نور يې په پښتو کښي ځيني مثالوُنه دي.

دوهم: د سنسکريت او پښتو مشترک ساکِن ږغوُنه ( consonants ):

په سنسکريت کښي د ساکنو يا ناښورنوْ ږغو بېل بېل ډوَلوُنه کارېږي، چي له هغو څخه ځيني خاصي غوْنې / غُنې (Nasals) او هغه ږغن او بې ږغه تنفسي اوازونه په پښتو کښي هيڅ استعمال نه لري، چي په ويلو کښې له خوْلې څخه تېزه هوا را وزي (Voiceless aspirated plosives & Voiced). بېله دغوْ خاصو ږغو څخه، په پښتو کښي د سنسکريت يو و نيم داسي ساکن ږغوُنه په خپل اصل کيفيت او شکل خوندي دي، چي مثال يې حتا په ځينو هندو – آريايي ژبو، له هغې

ډلي څخه په هندي کښې هم نه ليدل کيږي. په راتلوّنکوّ کرښوّ کښې د سنسکريت او پښتو د دغه راز مشترکو ټکوّ په اړه څو لنډي خبري کوّوّ:

١) ष :

د سنسکريت دا ساکن ږغ کټ مټ پښتو ( ښ ) غږندي ږغ لري؛ او د دواړو ژبوّ په فونيټکه الفبې کښې د (ṣ) په نخښه افاده کيږي. البته، په سنسکريت کښې د عامي قاعدې له مخي په دوو بېلو حالتو کښې دوه بېل اوازونه ورکيي. ښايي دا خبره وځينو کنجکاوو کسانو ته د تعجب او اريانۍ وړ وګرزي، چي ساکن ږغ څنګه دوه بېل ږغونه افاده کولای سي؛ خو دا خبره بېخي سهي او دقيقه ده. په سنسکريت کښې هر ساکن يا بې حرکته توری هم ځان ته ږغونه لري. په عادي حالت (ष) کښې د (aṣ) او په مطلق ساکن حالت کښې، چي عمودي خط يې په منځ کښې نيمی کيږي، د(ṣ) ږغ افاده کيي.

د (ښ) ږغ په ځينو هندو- آريايي ژبوّ کښې پښتو غږندي په خپله اصلي بڼه، خو په ځينو نورو له هغو څخه په هندي کښې په ( ش ) اوښتئ دئ، چي د سنسکريت، هندي او ځينو هندو- آريايي ژبوّ په فونيټکه الفبې کښې د (ś) په نخښه تمثيليږي ( د پښتو په فونيټکه الفبې کښې د شين ږغ د « š » په نخښه افاده کيږي)؛ مثلاً وَرَٰښ / ورښهـ / وَّرَښ ( va-raṣ/ varṣ/ varṣḥ) هغه سنسکريت ټکی دئ، چي پښتو تر اوسه د« اوّرښت/ وّرښت » په بڼه خوندي کړئ دئ. په سنسکريت کښې عموماً په دغو ماناوو راغلئ دئ: ١) اوّرښت/ وّرښت، باران، باران اوربدنګ. ٢) پسته اور باران، څاڅکي څاڅکي باران، نری باران. ٣) د باران موسم. ۴) اوريځ/ وريځ. ۵) کال، د يو کال موّده. ۶) د مځکي يا پېژندل سوي نړۍ له نو/ نهو برخو څخه يوه برخه. ٧) هند ( په دې مانا د بهارت وَرشه Bhārat-varśa يا بهارت وَرش Bhārat-varś په بڼه، چي د جَمبُدويپ Jambudvīp مترادف دئ ).[٨]

لکه څنګه چي مخکي يادوّنه وسوه، په هندي کښې د سنسکريت لرغوّنی ږغ ( ښ ) په ( ش ) اوّښتئ دئ، څکه نو سنسکريت وَرَٰښ' / وَرَٰښهٖ / وَّرَښ ( va-raṣ/ varṣ/ varṣḥ) د وَرَٰش/ وَّرَش' (wa-raś/ warś) په بڼه وايي. دا سنسکريت ټکی په ځينو هندو- آريايي ژبوّ د « وَسّه vas-sa»، « واسه vā-sa»، «وارښه vār-ṣa»، « وَښ waṣ»، « ووښ wōṣ»، « واښ wāṣ»، «وارښَه vār-ṣá»، « وَرښيه várṣ-ya» او داسي نورو په بڼه راغلئ دئ، چي په ځينو کښې يوازي د اوّرښت، په ځينو کښې يوازي د کال او په ځينو نورو کښې د اوّرښت او کال دواړو ماناوي افاده کيي. مخکي يادوَنه وسوه، چي د بهارت وَرش Bhārat-varś ( د بهارتيانو ټاټوبی يا هندوستان/ هند) عبارت هم له دغه سنسکــريت وَرښ / وَرښهـ/ وَّرَښ ( va-raṣ/ varṣ/ varṣḥ) څخه سر پورته کړئ دئ. هندي وَرش/ وَّرَش او پښتو وّرشو/ اوّرشو (څرځای، سمسوره يا شېرازه مځکه، ټاټوبی ) هم دواړه له دغه سنسکريت «وَرښ/ وَرښهـ/ وَّرَښ» سره ايتيمولوژيک او سيمانټيک پيوند لري. هغه سر کا

زمانې د سپو د لوبو – چې يې نه واهه زمري پل پر اؤرشو (حميد مومند ماشوخېل). په سنسکريت کښې د (ښ) لرؤنکؤ ټکؤ څو نمؤنې:

| پښتو مانا | تلفظ | سنسکريت/هندي ټکی |
|---|---|---|
| شپږم، شپږمه برخه. | ṣaṣ'ṭha | षष्ठ |
| شپېته | ṣaṣ'ṭiḥ | षष्टि: |
| ژبه | bhā'ṣā | भाषा |
| کره کتنه، نقد، شننه. | sa'mīk'ṣā | समीक्षा |
| اعلانول، بيانول، ژمنه کول. | ghoṣ'ṇā | घोषणा |

په خواشينی سره د سنسکريت او پښتو دا لرغؤني ږغ د پښتو ژبې په ځينو لهجو کښې هم په بشپړه يا جزيي ډوَل نست سوئ دئ. د پښتو په جنؤب – ختيځه لهجه کښې په (خ = x) خو په مرکزي لهجه کښې په داسي ږغ اوښتئ دئ، چې نه (ښ) دئ او نه (خ)، بلکي د (ښ) او (خ) تر منځ واقع دئ (د دغه ږغ فونيټکه بڼه د داسي نخښې په وسيله افاده کېدای سي، چې نيمی بدنه يې د ښين او بله نيمی بدنه يې د خې تمثيل وکي).

په جنؤب – ختيځه لهجه کښې «پښتو»، «پښتون»، «ښه»، «ښايسته»، «ښخ» او داسي نور په «پختو»، «پختون»، «خه»، «خايسته»، «خخ» او داسي نورو اوښتي دي. ښکاري چې د بېلابېلو ټکؤ په جوړښت کښې د (ښ) او (ک) ږغو پرله پسې واقع کېدل د دغو لهجو و ويؤنکو ته مشکل پرېوزي، په دې خاطر نو اړوزي، چې د دغه راز ټکؤ له ترکيب څخه د (ښ) ږغ په يومخيز ډوَل حذف کې؛ مثلاً «کښېناستل»، «کښېوتل»، «کښېنول»، «کښېښول»، «بخښنه»، «نخښه»، «ښکنځل» او داسي نور د «کيناستل»، «کېوتل»، «کېنول»، «کېښوول»، «ببنښه»، «نښه»، «کنځل» او داسي نورو په بڼه وايي. په دغؤ پښتو لهجو کښې کله کله د (ښ) ږغ، هندي غؤندي په (ش) اوړي؛ لکه کوښښ، تلاښ، ښورښ، نښښ، ښادي، ښادي خان او داسي نور، چې زياتره يې د کوشش، تلاش، شورش، نښش، شادي، شادي خان او داسي نورو په څېر وايي. د پښتو ادب ځيني متن تراشان (نه متن پوهان) او نورو تش په نامه محققان او فرهنګيان په دې وروستيو کلو کښې د ټولو علمي او تحقيقي موازينو پر خلاف، په ټول واک او ځواک کوښښ کيي، چې په دې يا هغه مردؤده وسيله د پښتو ژبې دا لرغؤنی ږغ حتا زموږ له پخوانيو ادبي اثارو څخه هم محوه کي؛ او په دې توګه داسي وښيي، چې ګويا د پښتو ټول لرغؤني اثار د دې په مورنۍ يا سيمه ييزه لهجه کښل سوي دي؛ خو په دې واقعيت يې سر نه خلاصيږي، چې په دې جاهلانه کار سره خپله طلايي او الماسي کاسه د پيتلؤ او چؤدنؤ په کاسه اليشيي. په ساده وينا، دا شوده ګان و خپلي څه باندي سل کلني لهجې ته د اصالت، قدامت او علمي تاداؤ د برابرولو په خاطر، د خپلي سپېڅلي ژبې تر څو زره کلن ځلانده او پرتمين تاريخ تېرېږي. البته، د دغه راز ناروا تصرفاتو او جعلکاريو له شامته، د ژبې و نحوي جوړښتو، ګرامري قاعدو او لغوي زېرمي ته هم ډېر درانه تاوانؤنه رسېدلي دي.

دمګړي دا ړغ د پښتو په جنوب – لوېديځه لهجه، شمال – ختيځه او وزيرۍ لهجه ( د وزيرو، مسيدؤ او د وزيرستان د غرنييو سيمو د نورو مېشتو خلګو لهجه ) کښې ژوندی دئ. په پښتو کښې د ( ښ ) ړغ خؤنديتوب زموږ د سپېڅلي ژبې د اصالت او قدامت تر ټولو پوخ او باوري سند دئ. په بله وينا، دغه ړغ و پښتو ژبې ته تر ويدي سنسکريت پؤري څو زره کلن زوږ تاريخ ورکيي. له دې خاطره يې نو بايد په خؤندي کولو کښې تر وسه وسه هڅه او کوښښ وکؤ.

۲) ड़ :

(ټ)، (ډ) او (ړ) د پښتو او سنسکريت درې نور مشترک ساکن ړغؤنه دي، چې د پښتو او هندو – آريايي ژبؤ پر ډېرو نيژدو او مزبؤتو تاريخي اړېکو دلالت کيي. لکه څنګه چې مخکي يادؤنه وسوه، زه د ايراني ژبؤ د شمال – ختيځ ښاخ د ړغنؤ، لغوي، ګرامري او نورو ژبنييو خصوصيتو په باره کښې هيڅ مالومات نه لرم، ځکه نو قضاوت نه سم کولای، چې پښتو به د ړغنؤ خصوصيتو له اړخه له دغؤ ژبؤ سره څؤنه نيژدېوالی ولري. د افغانستان د شمال – ختيځو او پاميري ژبؤ باصلاحيته پوهان و دغو پوښتنو ته علمي او مستند جوابونه ويلای سي، چې له پښتو سره د دغؤ ژبؤ نيژدېوالی تر سنسکريت او نورو هندو – آريايي ژبؤ ډېر ژور او اَرَت دئ که څنګه؟ ايا له سنسکريت او نورو لرغؤنو هندو – آريايي ژبؤ سره پر دؤنه ژورو لغوي او صوتي اړېکو او مشترکو اړخو سربېره، بيا هم دا خبره سمه او دقيقه ده، چې پښتو بايد د ايراني ژبؤ په شمال – شرقي څانګه پؤري وتړل سي که د دې څانګي او هندو – آريايي ژبؤ د اتصال يا تړښت د کړۍ په توګه؟ ځکه په پښتو کښې د آريايي ژبؤ د دواړو ښاخو (هندي او ايراني) ړغن خصوصيتونه او لرغؤني لغوي زېرمي خوندي دي. پر لغوي زېرمه خو به سړی ټينګار نه کيي؛ په دې چې پردي ټکي، ترکيبؤنه، عبارتؤنه، تعبيرؤنه، اصطلاحات او داسي نور، د زمانو په اؤږدو کښې، کله په جبر او کله په خوښۍ له يوې ژبې څخه و بلې ژبې ته لار مومي، خو د ژبو تر منځ په ړغنؤ خصوصيتو کښې يورنګي يا ورته والی د هغو تر منځ د ژور او ريښه يي يووالي يا اشتراک ترجماني کيي. پښتو له سنسکريت او نورو هندو – آريايي ژبؤ سره د(ټ)، (ډ) او (ړ) مشترک ړغؤنه په خپلو ټولو لهجو کښې خوندي کړي دي.

۳) ण :

د سنسکريت او پښتو بل مشترک ساکن ړغ ڼؤن ( ڼ ) دئ، چې عموماً د (ण) په توري افاده کيږي؛ خو په مطلق ساکن حالت کښې بې عمودي خطه کښل کيږي. دلته يې څو بولګې وړاندي وکؤؤ، چې د هندي ژبې زياتره ( نه ټول ) ويؤنکي يې د ( ڼ ) پر ځای په ( ن ) سره وايي[۱۰] :

| پښتو مانا | هندي تلفظ | سنسکريت تلفظ | سنسکريت |
|---|---|---|---|
| سؤَب / سبب، وجه، علت، مؤجب. | kā'ran | kā'raṇ | कारण |
| عام، عادي، روځنی، روزمره، ساده. | sād'hā'ran | sād'hā'raṇ | साधारण |
| اټؤمي، هستيه يي، ذره يي. | pa'ra'mā'nu | pa'ra'mā'ṇu | परमाणु |

د هندي ژبې ځینې ویؤنکي د سنسکریت دغه پخوانی رغ په نؤن الیشیي، خو پښتو د سنسکریت او ځینو نورو هندو-آریایي ژبؤ په شان په خپله اصلي او لرغؤنې بڼه ساتلئ دئ. البته، د شمالي پښتؤنخوا لیکوال یې په ځینو ټکو کښې په «ړ» الیشیي؛ مثلاً دی. انګړ، پاړه، رؤړا/ رڼا او داسي نور ټکي د انګړ، پاړه، رڼا او داسي نورو په څېر کاري. که خدای مکړه دا تحریف د ژبې و نورو لهجو ته هم پسي وغزېږي، په پای کښې به دغه اصیل او پخوانی رغ هم پښتو (ښ) غؤندي د نابودۍ له خطر سره مخامخ سي. تاسي وګورئ د دري په اؤلسي محاورو کښې تر اوسه د مجهولي او معرؤفي (یاء) پَرک روښانه دئ. شېر، ابغ، مېخ، تېز، مېز او داسي نور ټول په مجهوله یا اوږده (ې) وایي؛ خو په لیکدود کښې د مجهولي (ې) د نه لرلو په وجه شېر (زمری)، شیر (شیدې)، تیر (ګاډر، خاده، دستک)، تېر (پخوانی) او داسي نور مختلف او متفاوت رغؤنه ګرده د (ی) په یوه واحد توري افاده کیي. ایرانیانو خو پخوا لا دا تؤپیرؤنه په وینګ او کښنګ دواړو کښې تر خارو لاندي کړي دي.

په ژبه کښې دا ډوَل بې باکۍ او بې توجهۍ نه یوازي د لرغؤنو ادبي متنو په پوهېدو کښې لویي ستونزي پېښیي؛ بلکي د ژبې پر اصالت، قدامت او د تحول او تطؤر پر بېلابېلو پړاوو هم لوی ګوزار کیي. دا خبره لمر غؤندي روښانه ده، چي د ژبې د اصیلو او لرغؤنو اوازو سمه او دقیقه ساتنه زرؤنه کاله د یوې ژبې اصالت او لرغؤنتیا ساتي؛ د تاریخي سوابقو او بېلو بېلو مرحلو د اثبات دپاره یې د اسنادو او مدارکو و وړاندي کولو ته هیڅ اړتیا نه پېښیږي. برعکس، هغه ژبې چي د زمانو په تېرېدو سره خپل اصیل او لرغؤني خصوصیتونه بایلي، د خپلو تاریخي سوابقو او بېلابېلو تکاملي پړاوو د اثبات دپاره د بېلابېلو اسنادو او شواهدو و وړاندي کولو ته اړوزي. کله کله خو د زمانو د بې رحمۍ او بې مهرۍ په وجه د داسي تاریخي مدارکو مؤندل او غؤندؤل هم په اسانه کار نه دئ.

دریم: د ساکنو رغو تجمع (consonant cluster):

کله چي په یوه کلیمه کښې تر یوه ښورن ( واول ) رغ دمخه یا وروسته، دوه، درې یا زیات ساکن رغؤنه، په پرله پسي ډوَل راسي، و دغه حالت ته نو د ژبپوهنې په اصطلاح تجمع ساکنین (په انګرېزي کښې consonant cluster ) وایي، چي هغه هم د ساکنینو د لومړۍ او وروستۍ تجمع (په انګرېزي کښې clusterinitial and end ) پر دوو بېلو ډوَلو وېشل کیږي؛ مثلاً د انګرېزي په سپلیټس (splits) ټکي کښې (spl) رغؤنه د ساکنو رغو لومړۍ تجمع (clusterinitial) او (ts) رغؤنه د ساکنینو وروستۍ تجمع (clusterend) بلله کیږي، چي تر (i) واول وروسته راغلي دي.[11] په پښتو «ستؤخ/ ستؤغ» کښې (س) او (ت) لومړي بې حرکته رغؤنه (clusterinitial)، (ؤ) ښورن یا حَرکي رغ او بالاخره (خ/ غ) ناښورن رغ دئ. دروه droh ( په پښتو کښې دروهان جمع ) د پښتو او سنسکریت (druh) مشترکه کلیمه ده، چي لومړي دوه رغؤنه (د) او (ر) یې ناښورن، (و) یې ښورن او وروستۍ (ه) یې بیا ناښورن رغ دئ. پښتو بؤر (لکه په «تربؤر» کښې) او

دري بره (لکه په «خُسر بره» کښي) له سنسکریت پؤترهـ putrḥ (زوی، بچی) سره ایتیمولوژیک او سیمانتیک اړیکی لري.[۱۲] په دغه سنسکریت ټکي کښي د (پ) ړغ ساکن، (و) ښورن او د (ت، ر، هـ) ړغؤنه په ګډه د ساکنو ړغو وروستی تجمع (clusterend) ده.

د نړی په ځینو ژبؤ کښي د ساکنو ړغو تجمع د کلیمو په سهي او دقیق وینګ کښي هیڅ ستونزه او جنجال نه پیښیي. برعکس، ځیني ژبي نه یوازي د دغه راز غؤړشکؤ ساکنؤ ړغو په ویلو کښي لویي پېچومي او مشکلات لري، بلکي هغه ټکي هم سم نه سي ادا کولای، چي په سر کښې ساکن ړغ راغلئ يي؛ لکه «ستنډرد»، «سټریټ»، «سټار» او داسي نور. په ایرانی پاړسي او عامه دري کښي دغه او داسي نوري کلیمې د ناچاری له مخي د «اِستاندارد/ اِستندرد»، «اِستریت»، «اِستار» او داسي نورو په څېر وايي. البته، د دري د ځینو لهجو په عامیانه محاورو کښي تر اوسه هم «البدء بالساکن» یا په ساکن سره د کلیمې شرو کول مشکل نه لري. د دري په عامیانه محاورو کښي مي له ځینو خلګو څخه د جوان (jwān)، سکندر (Skan-dar)، ستارَه (stā-ŕa) او داسي نورو ټکي آرو بدلي دي، چي ګرده په ساکن سره پیلیږي. دا ټکي د دري په ادبي او علمي حلقو کښي د جَوان (ja-wān)، اِسکَنــدر (Is-kan-dar/ سِګَندر Si-kan-dar)، سِتارَه (si-tā-ŕa) او داسي نورو په ښو باب دي. د دې خبري مانا دا ده، چي دري هم پخوا پښتو، سنسکریت او نورو هندو-آریایي ژبؤ غؤندي په ساکنؤ ړغو سره د کلیمو په شرو کولو کښي ستونزه نه لرله. مالومیږي چي د ایرانی پاړسي د اغېزې په وجه يې - د ښلابښلو (یاء ګانو) په دود - په دې برخه کښي هم د خپلي ژبي اصیل ړغن خصوصیتونه له لاسه ور کړي دي. په ایرانی پاړسي کښي اوس عربي غؤندي په ساکن ړغ سره د کلیمو شرو کول محال دئ. په اؤردؤ کښي چي د سنسکریت - هندي، پاړسي، عربي، تؤرکي او انګریزي ژبؤ مجموعه ده، د کلیمو د منځ ساکن ړغؤنه هم بې اضافي حرکته نه سي ویلای؛ مثلاً پارک (pārk)، کارډ (cārḍ)، شِناخْت (śi-nāxt) او داسي نور، د پارَک (pā-rak)، کارَډ (cā-raḍ) او شِناخَت (śi-nā-xat) په بڼه ادا کیي؛ حال دا چي په سنسکریت، هندي او انګریزي کښي البدء بالساکن او تجمع ساکنین هیڅ راز جنجال نه پیښیي. د دې خبري احتمالي نتیجه ښایي دا يي، چي د اؤردؤ ژبي په دې ستونزه کښي د پاړسي او عربي ژبؤ لاس دئ.

د دې بحث مهمه او اساسي خبره دا ده، چي پښتو، سنسکریت او زیاتره هندو-آریایي ژبي د دغه راز غؤړشکؤ ساکنو ړغو په سم وینګ کښي هیڅ راز پېچؤمه او مشکل نه لري. دغه او مخکي یاد سوي ړغن خصوصیتونه ټول پښتو ژبه د آریایي ژبؤ د هندي او ایراني ښاخو، بلکي هندو-اؤرؤپایي کورنی تر مور (ویدي سنسکریت) پؤري رسيي، چي څو زره کلنه لرغؤنې ژبه ده.

د خوښی ځای دئ، چي د پښتو دا اصیلي او لرغؤني ځانګړتیاوي زموږ د عامو وګړو په خبرو او مرکو کښي په بشپړ امانت خؤندي دي. د یوه ملت یا قام اصلي ژبه هم په حقیقت کښي د هغه ملت یا قام د عامو خلګو ژبه ده نه د هغه قام د «ډاکټرانو» او «ماسټرانو» ښخؤنده، پېچلې او ناماُنؤسه

ژبه. که څه هم د عامو خلګو په ژبه کښې هم د زمانو په تېرېدو سره ډَوَل ډوَل بدلوُنوُنه راځي، خو سره له هغه هم د لاسوُهوُنکو «ډاکټرانو» او «ماسټرانو» تر جعلیاتو، تحریفاتو او تصرفاتو ډېره د باور او ډاډ وړ ده. تاسي وګورئ او قضاوت وکړئ، چي د ژبې او ادب «ډاکټرانو» زموږ په سپېڅلې ژبه څه بازۍ کړي دي:

– د لوی کندهار بومي خلګ تر اوسه پوُري په خپلو خبرو او مرکو کښې د «آروېدل»، «آخیستل/آخستل» او داسي نورو مصدرو ټولي صیغې په ممدوده یا مدوالا الف وایي، د پښتو په خطي نوُخسو کښې هم زموږ د پلرو او نیکو دا لرغوُني تلفظوُنه په اصیله او لرغوُنې بڼه ثبت دي، خو موږ یې د ژبې او ادب د «پوهاندانو» او «ډاکټرانو» په فتوا، په پټو سترګو، د «اورېدل» او «اخیستل/اخستل» په څېر وایو.

– د لوی کندهار بومي پښتانه تر اوسه پوُري په خپلو خبرو کښې «روځ» وایي، خو زموږ «پوهاندانو» او «اکاډمیسنانو» هغه په «ورځ» اړولې ده. د پښتو پخوانۍ خطي نوُخسې هم هر ځای «روځ» کاږي نه «ورځ». که پوښتنه ځني وکې، چي ولي مو«روځ» په «ورځ» اړولې ده؟ علمي او معقول جواب خو نه لري، اروُمروُ به د «اکثریت» او «اقلیت» په ماته او بې سوُره سوُرنا کښې پوُکي. پټه دي نه یي، چي دغو «پوهاندانو» او «ډاکټرانو» له اوږدو زمانو راهیسي په خپلو ناروا او نارسا فتواوو سره د ټولني پر شعور، په تېره بیا لوُستي قشر، ژوره اغېزه ښندلې ده. د دغه راز ناوړو اغېزو په نتیجه کښې به اوس خود نو و خپلو کړووړو پرېکړو ته د «اکثریت» او د ټولني و اصیلي او سپېڅلي ژبې ته د «اقلیت» پوُچه او بې ربطه اصطلاح کاریي. تاسي د یوې دقیقې دپاره داسي وګڼئ، چي «ورځ» د «اکثریت» او «روځ» د «اقلیت» لهجه ده. سره له دې هم ایا عددي اکثریت د پوهې او منطق په چارو کښې و خپلې ناسمې او نامعقولې پرېکړي ته د تقدم او رجحان جواز ورکولای سي؟!

– د لوی کندهار، وزیرستان، کندوُز او تخار پښتانه تر اوسه پوُري د زمان او مکان د ظرفي حالتو دپاره«کښې» وایي، خو زموږ علامه او فهامه ژبپوهانو هغه په « کې » اړولې ده، چي په واقعیت کښې د «کي یې» یا «کښې یې» مخففه بڼه ده. د پښتو په پخوانیو اثارو کښې هم هر ځای «کښې» راغلې ده نه «کي» یا «کې». کله چي خلګ «کښې» وایي، موږ یې ولي باید په «کي» یا «کې» واړوُو؟

– زموږ عام و خاص وایي: وکه، وکوُ، وکئ او داسي نور، خو ځیني« ډاکټران » او « ماسټران » وایي: نه! باید اروُمروُ: وکړه، وکړو، وکړئ او داسي نور وکښل سي. که پوُښتنه ځني وکې، چي ایا وکه، وکوُ، وکئ او داسي نور پښتو ټکي نه دي چي پر ځای یې وکړه، وکړو، وکړئ او داسي نور وراندي کوئ که څه بله خبره ده؟!

– نن سبا د پښتنو شمېر و لږ و ډېر پینځوسو میلونو ته رسیږي. تاسي په دې ټولو کښې یوه سیمه، یو خېل یا یوه کوچنۍ قبیله راوښیاست، چي هینداره، هیلمند او داسي نور دي هنداره او

هلمند و وايي. د دغو ټکو په جوړښت کښې له ورايه د (ی) ښورن رغ سته؛ او زموږ ځايي خلګ يې هم په خپلو محاورو کښې د (ی) په لرلو سره وايي، مګر د پښتو او پښتنې دودو د ساتنې دعوه داران يې همېشه بې (ی) کاروي. نښخه چې په دې کار سره به نو څه ثابتول غواړي؟

– زموږ خلګ خوړنګ، چښنګ او داسې نور وايي، خو ژبپوه، ليکوال، شاعر، ژورناليست او داسې نور فرهنګيان سمدلاسه خوړل، چښل/ څښل او داسې نور ځنې جوړيي. د پښتو ځينې «علامه» او «فهامه» استادان بيا د «عاميانه» ژبې نوم پر ايږدي؛ او په دې شعوري يا غيرشعوري تېروتنې سره يې په ټولو ادبي اثارو، په تېره بيا رسمي او مطبوعاتي ژبه کښې د کارولو مخه نيسي. نه پوهېږم د دې ښاغلو په دې خبره هم سر خلاصيږي که څنګه، چې په تحريري ژبه کښې د شفاهي ادب د بېلابېلو کليمو، ترکيبو، عبارتو، تعبيرو او داسې نورو ارزښتناکو لغوي، ادبي او علمي پانګو نه استعمال د هغو له تدريجي محوه کېدو سره مترادف دئ. هغه څوک چې د خلګو د ژبې او فرهنګ د ساتنې، ودې او پرمختيا دعوې کيي، هيڅکله بايد د خپل اؤلس و شفاهي ادب او نورو فرهنګي ارزښتو ته شا وا نړيي.

– زموږ خلګ له عمرو راهيسې د ځينو نؤمو مغيره جمعې د ښاغلو، وتلو، منلو، زمرو، ننګيالو، توريالو او داسې نورو په بڼه وايي، چې د پښتو په لرغؤني ادب کښې هم ژورې ريښې لري، خو د ژبې ځينې «ډاکټران» او «ماسټران» نن سبا د اؤلس پر دغه ارزښتناک ادبي ميراث له يوې مخې سرَه چليپا کاږي؛ او د خپلو پرپړو په استناد حُکم کيي، چې دغسې جمعې بايد ارؤمرؤ د ښاغليو، وتليو، منليو، زمريو، ننګياليو، توريايو او داسې نورو په ډَوَل وکښل سي. که ورته و وايې، چې دغه راز جمعې خو نه يوازې د عام اؤلس په خبرو کښې شپه او روځ کاريږي، بلکې د پښتو د ټولو لويو او پياوړو شاعرانو لکه ميرزا خان انصاري، خوشال خان خټک، رحمان بابا، حميد مومند، پيرمحمد کاکړ او داسې نورو ديوانونه هم په ډک دي؟! زموږ د خلګو په خوږو محاورو کښې د ځينو نؤمو مغيره جمعې له اسم سره د(و) په زياتولو په بڼه باب دي؛ لکه: مکتبو، پوهنتونو، روغتونو، کتابو، باغو او داسې نور، خو د ژبې «ډاکټران» او «ماسټران» دغه لنډې، اسانه او مروجې مغيره جمعې نه مني. د دی په «عالمانه» نظر بايد دغسې جمعې خامخا د مکتبونو، مکتبونو، پوهنتونونو، روغتونونو، کتابونو، باغونو په شکل وويل او ليکل سي. زما په قاصر نظر د «پوهنتونو» او «پوهنتونونو» تر منځ په اصالت، قدامت، مانا او داسې نورو مهمو اړخو کښې هيڅ تؤپير نسته. هر څوک کولای سي، د خپلې اسانۍ او سليقې پر اساس يې د «پوهنتونو» يا «پوهنتونونو» په څېر و وايي او وکاږي. د پښتو ادب د پخوانيو شاعرانو او ليکوالو په کلام کښې هم په دواړو بڼو راغلي دي. البته، د «پوهنتونونو» نؤنۍ يا نؤنداره بڼه يې د شعر د وزن او آهنګ په خاطر کار سوې ده؛ خو د ځينو «ډاکټرانو» او «ماسټرانو» د فرمان پر خلاف، زما په نظر د «پوهنتونو» مغيره بڼه تر «پوهنتونونو» په څو دليله غؤره او ارجح ده:

– اول: لنډه او اسانه ده.

– دوهم: د خلګو په روځنيو خبرو او مرکو کښې کاريږي.

– دریم: د ژبې په لغوي زېرمه کښې د (و والا) مغیره جمعو د استعمال ساحه تر (نو والا) مغیره جمعو ډېره اَرَته او ژوره ده؛ مثلاً که د ځینو مؤنثو نؤمو لکه: باغچه، مځکه/ ځمکه، چؤغکه، دروازه، ګلدسته او داسې نورو مغیره جمعي جوړؤؤ، هیڅکله یې په پای کښې د «نو» اضافي شاوندی نه سو راوستلای. یانې تل یې باید مغیرې جمعې د باغچو، مځکؤ/ ځکمؤ، چؤغکؤ، دروازو، ګلدستو او داسې نورو په شکل جوړې کؤ. په دې اړه یوه بل ژوندي مثال ته هم پام وکئ: زموږ خلګ د «کلي» مغیره جمع د «کلؤ» په شکل وایي؛ لکه په دې جؤمله کښې: «د اؤلسوالۍ په کلؤ او باندو کښې ډېر بارانؤنه سوي دي.» خو د پښتو ځینې «ډاکټران» او «ماسټران» بیا فتوا ورکیي، چې د «کلؤ» پر ځای باید همېشه «کلیو» و ویل او وکښل سي؛ ځکه چې د دغو «مبارکو حضراتو» په اِدعا کلؤ (دهات) له کلو (سالها) سره د التباس ستونزه پیدا کیي؛ مګر په دې خبره یې هیڅ سر نه خلاصیږي، چې د کلؤ (دهات، قصبات) او کلو (سالها) تر منځ خو په وینګ کښې مځکه او اسمان پَر ک سته. په کلؤ (دهات، قصبات) کښې معرؤف یا لنډ (ؤ) خو په کلو (سالها) کښې مجهول یا اؤږد (و) کار سوئ دئ. که دغو «ډاکټرانو» او «ماسټرانو» په مکتب او پوهنتون کښې و شاګردانو ته د (و) د ټولو ډَوُلو، په تېره بیا معرؤف او مجهول واو په باره کښې سم او دقیق مالومات ورکړي وای، نو اوس به هیڅکله دا بېځایه اندېښنه هم نه ورته پیدا کېدلای.

ګران لؤستؤنکي شاهدان دي، چې زموږ د ژبې «پوهاندان» او «ډاکټران» آروېدل (ārwedal) نه کاري، چې له یوې خوا د خلګو اصیل او لرغؤنی تلفظ دئ؛ او له بلې خوا له اورېدل oredal (باریدن) سره د التباس مخنیوی کیي، خو په نورو مواردو کښې بیا د کلیمو د التباس یا ګډوَډېدو سفسطه وایي. سربېره پر دې، د التباس مخنیوی دا مانا نه لري، چې د بېلابېلو ټکو په املاء او ظاهري جوله کښې له ځانه لاسوهنې وسي. تاسې وګورئ د پارسي پخوانو ژبپوهانو او ادیبانو له عربي سَدّ (بند، خنډ، مانع، حایل) ځخه د پارسي سَد (سل) د بېلولو په خاطر وخپل اصلي او ذاتي ټکي ته معرب رنګ ور کړئ دئ. یانې سَد (په سین) یې په صد (په صاد) اړولئ دئ؛ په داسې حال کښې چې سَده (قرن، سل کاله) یې بیا پر خپل حال پرې ایښې ده. لغتپوهان او ریښه پېژندؤنکي ټول پوهیږي، چې «سد» او «سده» دواړه له یوې آریایي ریښې ځخه راوتلي دي.[۱۳] اګاه او هوښیار خلګ د نورو ژبو لغتؤنه، ترکیبؤنه، عبارتؤنه، تعبیرؤنه او اصطلاحوې په خپله ژبه ګډیي، چې په دې توګه یې لغوي زېرمه بډایه او اَرَته سي، خو چادیان په لوی لاس وخپل پلرني مال ته پردی رنګ ورکیي. راسئ اوس نو ګز پر کښېږدئ او در ګز یې کئ! د دې خندني شؤډنګ د یادوَنې مخسد دا دئ، چې د ژبې «پوهاندان» او «ډاکټران» د حق او ناحق التباس د مخنیوي په پلمه د خپلو اصیلو کلیمو د اؤږدوَلؤ، لنډوَلؤ، کږوَلؤ، تحریفوَلؤ او داسې نورو غیرمؤجه کړنؤ جواز نه لري.

– ځینې «ډاکټران» او «ماسټران» د پښتو د جنؤب – لوېدیځې لهجې د عام و خاص په روخنییو خبرو کښې کارېدؤنکي مخففات؛ لکه: کښې (کښې یې)، کې (کې یې)، ځې (ځه یې)، چې (چې یې)، مې (مې یې) او داسې نور د «بې قاعده» او ځینې نور یې د «عامیانه» په نامه کړي، خو زې (زه یې) د پښتو د هغو مرکبو ټکؤ مخففي یا لنډې بڼې بولم، چې د میلونو وګړو د اصیلي او سپېڅلي ژبې ریښتینې ترجماني کیي. دا مخففي بڼې د پښتو په لرغؤني ادب کښې هم په پېخر کار سوي دي. د دې خبرو مانا

دا ده، چې دغه ډَوَل مخففات نه بې قاعده دي، نه څه نوی بدعت او نه هم د ځینو په ناسم ګومان د عوامو ژبه. دا ډَوَل مخففات د یوې ژبې یا یوې خاصي لهجې د بې قاعدګۍ یا عامیانګۍ پر ځای د هغې ژبې یا لهجې د عروّج او کمال مانا لري، چې په پیدایښت، وده او پراختیا کښې د اسانۍ او سادګۍ لاس پروت دئ. بې مکتبه او بې پوهنتونه عوام د ژبې د سادګۍ او اسانۍ دپاره داسي نوښتوُنه کیي، چې د ژبې پوهنتوُني «ډاکټران» او «ماسټران» یې تصوّر هم نه سي کولای. تاسي پوښتنه او پلټنه وکئ، ځیني «پوهاندان» او «ډاکټران» په پښتو کښي و «کیشمیشو / کشمشو» ته بېله «ممیزو» بل هیڅ ټکی نه پېژني؛ دا ځکه چې دغو خوارانو اصلاً بل شی لیدلئ نه دئ؛ خو زموږ عوامو د خپلي پوهي، هوښیارۍ او ځیرکۍ په رڼا کښي د انګورو د بېلابېلو ډَوَلو و وچو بڼو ته بېل بېل نوُموُنه ټاکلي دي: «کیشمیش»، «اوُجوشي»، «ارتاوۍ»، «اوُځکي»، «ګندکي» او داسي نور. زموږ ځیني «پوهاندان» او «ډاکټران» و ډبري (سنګ) ته هم بېله «تیږي» بل ټکی نه پېژني؛ خو زموُږ عام خلګ د ډبري و بېلابېلو ډَوَلو ته جلا جلا نوُموُنه لري: ډبره، سنګړه، ګوَسه، ګاره، لپانکۍ، پرښه، ګینجوړۍ (ګیندجوړۍ)، ارغوُند، غرګۍ، سَخرَه، کرکنډه، کاڼي، شوکاڼۍ، جوړکاڼۍ، کرکاڼۍ، اره، شاخه، بغرۍ، بغرګۍ او داسي نور، چې هر یو یې په خاص مفهوُم او خاص ځای کښي کاریږي. دا متفاوت او متباین ټکي زموږ د عامو خلګو د فرهنګي – مانوي (معنوي) پرمختیا او بشپړتیا روښانه ثبوُت دئ. د دغو دلایلو له مخي نو عام خلګ د ژبې واقعي «ډاکټران» او «ماسټران» او د پوهنتونو په کاغدو غَرَه «پوهاندان» او «ډاکټران» د هغو پېښه ګر شاګردان دي. نتیجه دا چې که د عام او خاص په ژبه کښي دغسي ژوندي مخففات په دې یا هغه پلمه له چلنه ولوېږي، بیا خو د پښتو، په تېره بیا جنوُب – لوېدیځي لهجې په اصالت، قدامت او سپېڅلتیا کښي هم څه نه پاتیږي.

– د جنوُب – لوېدیځي لهجې میلوُنوُنه ویوُنکي وایي «خلګ»، خو «ډاکټران» او «ماسټران» وایي: «خلګ» مه وایاست ارۆمرۆ «خلک» ووایاست. که ورته و وایې، چې ولي؟ دی بېچارګان یې هم جواب نه لري. زه وایم او ښاغلو «خلګ» او «خلک» دواړه د «خلق» مفغن شکلوُنه دي، تاسي د څه استدلال له مخي «خلګ» ناسم ګڼئ؟! پر پړدئ چې ځني «خلګ» او ځني «خلک» ووایي.

– زموږ خلګ د خپلو نبکه ګانو په دود وایي: انګڼ، وُروُڼه، بانجاڼ او داسي نور، خو د پښتو د ځینو لهجو «ډاکټران» او «ماسټران» وایي: دغه راز ټکي باید دا انګړ، ورونه، بانجان او داسي نورو په بڼه و ویل او ولیکل سي. که ورته و وایې، چې او کاکا (ڼ) خو د پښتو داسي اصیل او لرغوُنی ږغ دئ، چې د دې ژبې لرغوُنتیا تر ویدي سنسکریت پوُري رسیي، نو تاسي یې ولي په (ن) سره الیشوئ؟! دغه ښاغلي وایي د ژبې په سپېڅلتیا او لرغوُنتیا پسي مه ګرزه. اصلي خبره دا ده، چې دغسي ټکي د ډېرکییو په لهجو (د دی په مورنییو لهجو) کښي هر چیري په (ن) سره ویل کیږي. زموږ خلګ وایي: بولګه (د دوهمي څپې په فشار)، خو ځیني «ډاکټران» او «ماسټران» وایي: بولګه سهي نه ده. باید خامخا بېلګه (د لومړۍ څپې په فشار) و ویل سي. زموږ خلګ وایي: جَګړهَ، دَندهَ، وړانګهَ او داسي نور (ګرده د دوهم سپوُڼ په فشار)، خو ځیني «ډاکټران» او «ماسټران» د دغو ټکوُ د اصل او ریښې پر خلاف، حُکم کیي چې داسي ټکي دي د جَګړه، دَنده، وړانګه او داسي نورو په بڼه و ویل سي (په ټولو کښي خج پر لومړي سپوُڼ). دا په دې خاطر، چې د دغو ښاغلو په مورنییو یا سیمه ییزو لهجو کښي په دغه ډَوَل دود دي.

«گچه»، «بارخؤ»، «لار»، «دوهم» او سؤنه نور هم له دې ډلي کليمو څخه دي، چي د ژبي ځينو «پوهاندانو» او «ډاکټرانو» يې پر «کچه»، «بارخؤ»، «لاره»، «دويم» او داسي نورو د «معيار» ټاپې وهلې دي.

د داسي ټکؤ، ترکيبو او عبارتو شمار نو تر انده پاس دئ. که له دغو ښاغلو څخه پوښتنه وسي، چي ستاسي کاره واره ولي د ژبي د اصالت او قدامت پر خلاف «معياري» او د نورو اصيل او لرغؤني ولي کړلي او «غيرمعياري» ګڼل کيږي، بيا نو د منطق او استدلال پر ځای د دی، په اصطلاح د«لړکي» او «ډېرکي» پر خندني، بابؤلاله شخؤند وهي؛ خپله کاره واره د «اکثريت» په نامه، شپه او روځ، د خلګو په غوږو کښي پوکي، خو د نورو اصيل او لرغؤني د«اقليت» په نامه يو مخ له چلنه غوړځيي.

کله چي د يوې ژبي د«پوهاندانو» او «ډاکټرانو» د علميت او معقوليت ګچه و دې حد ته را ټيټه سي، بيا خو د هغې ژبي اصالت او قدامت، څه چي و ژوند او بقاء ته هم هيڅ تمه او اسرَه نه کيږي: چو کفر از کعبه بر خيزد، کجا ماند مسلماني.

– زموږ خلګ ځيني تؤصيفي ټکي (چي په پای کښي غيرملفؤظه یاء راغلې يي) د مَؤلَه يي (مَؤلا والا، الله والا )، قبيله يي، عيسايي، عنعنه يي، فرقه يي، منطقه يي او داسي نورو په ښه وايي، خو د ژبي «ډاکټرانو» او «ماسټرانو» د پارسي په پيروی له هغو څخه مولوي، قبيلوي، عيسوي، عنعنوي، فرقوي، منطقوي او داسي نور جوړ کړي دي. له نېکه مرغه اوس حتا ايرانيان او زموږ دري ژبي ليکوال هم د خپل زاړه دود او دستور په غلطی پوهېدلي دي؛ ځکه ګورو چي نن سبا د قبيلوی، عيسوی، عنعنوی، فرقوي، منطقوی، ذروی، هستوی او داسي نورو پر ځای قبيله يی، عنعنه يی، فرقه يی، منطقه يی، ذره يی، هسته يی او داسي نور کارېږي. د دغه راز ناوړو جعلياتو، تحريفاتو او بدعتو لړی ډېره پراخه او اوږده ده؛ ځېرنه او شننه يې د دې ځای کار نه دئ (که ژوند ياري وکړه، يو وخت بې پر بېلابېلو اړخو نسبتاً پراخي او ژوري خبري وکؤ)؛ خو له دې فرصت څخه په استفادې سره بايد ارؤمرؤ ووايو، چي د ژبي «ډاکټران» او «ماسټران» بايد هيڅکله داسي فتواوي او فرمانونه را و نباسي، چي زموږ د خلګو له ژبي، دودو او رواجو سره ښکاره مغايرت ولري؛ ځکه هيڅ تحصيلي او علمي سند و دغه راز «ډاکټرانو» او «ماسټرانو» ته د خلګو د سپېڅلي او لرغؤني ژبي د اړؤلو، کړؤلو او نست کولو واک نه ورکيي؟! که د خلګو په ژبه کښي د « ډاکټرانو » او « ماسټرانو » ناسولټه لاسوهني جاري او ساري يي، بيا خو زموږ د مندو او پلرو په دې ارزښتناک تاريخي ميراث کښي تر دو– درو نسلو وروسته د اصالت او قدامت بولګه هم نه پاتيږي.

دا چي د ځينو «پوهاندانو» او «ډاکټرانو» په خبرو او ليکنو کښي چندان خؤند او جاذِبه نه ليدل کيږي، علت يې دا دئ چي دغو ښاغلو يا د خلګو خوږه او سپېڅلې ژبه د خپلو ناوړو سليقو او منحطو نظريو تابع کړې ده؛ او يا يې په ناپوهی سره کوښښ کړئ دئ، چي د نورو اؤلسو د ژبؤ وچي او مجردي ګرامري قاعدې، په پټو سترګو، پرخپله ژبه هم تطبيق کي. له دې خاطره نو ښځايه نه ده، دلته يو پلا بيا په تکرار او ټينګار سره و وايو، چي د يوه قام يا ملت اصلي ژبه په حقيقت کښي د هغه قام يا ملت د اصيلو و ګړو ژبه ده، نه د هغه قام يا ملت د «پوهاندانو» او «ډاکټرانو» ګرانه او پېچلې ژبه. په بله وينا، د يوې ژبي د ګرامر، ادبياتو او هر ښه و بد يوازني او دقيق معيار د عامو خلګو ژبه ده. موږ بايد د خپل اؤلس

د ژبې او فرهنګ د بارسالته پالونکو او روزونکو په توګه مسؤلیت لرو، چې په خبرو او لیکنو کښې د عامو خلګو جوملو اوډنه یا نحوي جوړښت، ګرامري قاعدې، صرفي باریکۍ، لغوي او اصطلاحي زېرمه او تر ټولو ارزښتناک د هغې د ژبې ړغن خصوصیتونه، په ټینګه خوندي وساتو.

ماخذونه او یادښتونه:


١ Sir Ralph L. Turner, A Comparative Dictionary of the Indo-Aryan Languages( London: Oxford University Press, ١٩٦٢-١٩٦٦) . Includes all three supplements, published during ١٩٦٩-١٩٨٥.

٢ http://en.wikipedia.org/wiki/Pashto_language

٣ http://en.wikipedia.org/wiki/Indo-Iranian_languages

۴. په سنسکریت او پښتو کښې د (و) د ډَولو د مقایسه یې څېړنې مفصله او مشرحه بڼه، د کندهار مجلې په دغه ګڼه کښې وګورئ:

محمدهارون خپل شعشعی، «په هندو- آریایي ژبو او پښتو کښې د (و) ډَولونه»، کندهار (۱۳۹۳)، زمري - وږی: ۱۷ - ۳۳.

۵. رسي، د هندو- آریایي ژبو، پښتو، پاړسي او ځینو نورو آریایي ژبو مشترک ټکی دئ. دا کلیمه په سنسکریت کښې د رشیمهِ (ra-śim□)، په پراکریت کښې د رَسّي (ras-sī)او په هندي کښې د رَسّي (ras-sī) او رَسَا/ رَسا (ra-sā / ras-sā) په بڼو راغلې ده: محمدهارون خپل شعشعی، د پښتوایتیمولوژیک فرهنګ: په پښتو کښې د هندو- آریایي ټکو څرک، ناچاپ.

٦Prof. R.S. Mc Gregor, " Introduction," Outline of Hindi Grammar with Exercises (Oxford: Clarendon Press, ١٩٧٢) xiii.

٧ Mc Gregor xvii.

٨ Vaman S. Apte, The practical Sanskrit-English dictionary. Revised and enlarged edition of Prince V. S. Apte's (Poona: Prasad Prakashan, ١٩٥٧-١٩٥٩) ١٣٩٧; John T. Platts, A dictionary of Urdu, classical Hindi, and English ( London: W. H. Allen & Co., ١٨٨۴) ١١٨٨.

٩ Turner ٦٦۴.

١٠ Prof Christopher Shackle & Dr Rupert Snell, Hindi and Urdu since ١٨٠٠ ( New Delhi, Heritage Publishers, ١٩٩٠) ٣٦.

١١ https://en.wikipedia.org/wiki/Consonant_cluster

۱۲. محمدهارون خپل شعشعی، د پښتوایتیمولوژیک فرهنګ: په پښتو کښې د هندو- آریایي ټکو څرک، ناچاپ.

۱۳. وګورئ په دغو معتبرو معاصرو پاړسي فرهنګو کښې د «سد»، «سده» او «صد» مادې:

علامه علی اکبر دهخدا، لغت نامه ( تهران: دانشگاه ملی تهران،۱۳۳۱)؛ دکتر محمد معین، فرهنگ فارسی،۶ج. ( تهران: امیر کبیر،۱۳۶۳)؛ حسن عمید، فرهنگ عمید، ۳ ج. چاپ دوم (تهران: مؤسسهٔ انتشارات امیر کبیر، ۱۳۶۵).



څېړندوی عبدالغفور لېوال

# اسطوره او ادبیات

دوهمه برخه



## یوناني اسطورې:

لرغونی یونان د خپلو اسطورو له اړخه خورا مشهور دئ. یوناني ارباب الانواع هر یو ځانته کیسه لري. د دغو واکمنو زیږېدا، مینه، کورنۍ او هرڅه عجیب دي. پخوانیو یونانیانو د هرڅه له پاره یو رب النوع درلود. د دوی تر ټولو مشر (زئوس) نومېدی، چې ګڼو نورو ئې ورسره خپلوي درلوده. دوی به تل د ځمکنیو پاچاهانو، پهلوانانو، جګړمارو زورورو او ښکلیو ښځو په ژوند کي لاسوهنه کوله. یو به ئې مرستي ته راغی او بل به ورسره دوښمني راپیل کړه. یو به پر یوې ښځې مین شو او بل به ئې کینه پر زړه واخیسته، بس د ارباب الانواعو لکه چي بل کار نه وو، همدا د انسانانو په ژوند به ئې لوبي کولې. د یونان ګڼي تراژیدۍ او کومیډۍ د دوی له کړنو ځخه جوړي دي. پر یوناني اساطیرو به بل ځای هم بحث وکړو، خو دلته د اسطورو او ادبیاتو په بحث کي د لرغوني یونان څو مشهوري اساطیري منظومې څېړو، چې پر نړۍ والو ادبیاتو او ان بشري تفکر ئې خورا مهم اغیز پرې ایښی دئ. دغه یوناني اساطیري اثار د نړۍ په سترو شهکارونو کي شمارل کېږي.

## ایلیاد او اوډیسې:

دا دواړه سترې نړۍ والي اسطورې د یونان د تر ټولو ستر او لرغوني شاعر هومر اثار ګڼل شوي دي. لومړی راځئ وګورو، چي هومر څوک دئ؟

هومر ځومره چي د نړۍ ستر اثار ورپوري منسوب دي، هماغومره ئې د ژوند په اړه معلومات کم او تت دي، داسي ګڼل کېږي،

چي دغه ستر شاعر تر میلاد زر کاله پخوا په اتن کي اوسېده. که څه هم د یونان اووه ښارونه د دې دعوا کوي، چي هومر ئې اوسېدونکی وو، په ځینو روایتونو کي لولو چي دغه شاعر په سترګو ړوند وو، خو ګڼ روایتونه او هغه انځورونه چي په ده پوري اړه لري ښیي چي هغه بینا سترګي درلودې، یو شمېر پوهان فکر کوي، چي نوموړي له زرو نه تر اته سوه مخزېږدي کلونو تر منځ ژوند کړی دئ. (هومر په یوناني ژبه [اومیروس] او په لاتین کي [هومروس] ګڼل شوی دئ). (ایلیاد: ۲ مخ).

(له نامتو تاریخ لیکونکي هیرودت څخه روایت دئ، چي وایي هومر تر ده څلور سوه کاله وړاندي اوسېده، چي په دې حساب ئې ژوند د ټرای تر جګړې درې سوه کاله وروسته اټکل کېدای شي). (ایلیاد: ۳ مخ).

ځیني روایتونه داسي هم شته چي هومر د ژوند په وروستیو کلونو کي ړوند او بېوزلی وو او خپل تلپاته شعرونه به ئې د سادو ګانو په دود په ترنم کي لوستل، چي خلک ورته څه خواړه ورکړي، یو ځای لولو: د یونان اووه ښارونه د هومر د ورخپلولو په شخړه بوخت ول او ویاړ ئې په کاوه، حال دا چي ړوند هومر په بېوزلۍ کي په دې ښارونو کي ګرځېده او خیرات ئې غوښت.

په هرصورت یو شمېر کره کتونکي فکر کوي، چي ایلیاد او اوډیسې د یوه شخص د فکر او ذهن مولود نه، بلکي د ګڼو شاعرانو له خوا ویل شوي منظومې دي، چي که لومړنی ویونکی ئې هم هومر وي، نو وروسته پرې زیاتوني شوي دي، خو تر اوولسمي پېړۍ وروسته دا باور پیاوړی شو، چي دا دواړي اسطورې په بشپړه توګه د یوه شاعر (هومر) له خوا ویل شوي دي.

اوس به راشو، چي د بشریت د تاریخ دغه ستري اسطورې په بېله بېله بڼه وپېژنو:

۱- ایلیاد (ایلیاس، ایلیادوس Iliad, Ilias, Iliados):

په څلیرویشتو سرودونو کي دغه ستره اساطیري حماسه د یونانیانو له خوا د ټرای (تراوا، ایلیون) د ښار د کلابندۍ کیسه رانغاړي. ایلیاد په ۱۶۰۰۰ شپږ رکني مېسرو (مصرع) کي تر میلاد وړاندي په اتمه پېړۍ کي کښل شوی. (فرهنګ آثار، لومړی ټوک، ۶۱۹ مخ).

د کیسې لنډیز:

ټرای (په کوچنۍ اسیا کي د یوه ښار نوم دئ، چي ایلیون او پرګام هم بلل شوی دئ) (ایلیاد: ۱ مخ).

یونانیانو د دغه ښار د نیولو له پاره له پخوا څخه بهانې لټولې، له روایتونو څخه ښکاري، چي ټرای د اسیا وچي ته د یونانیانو له پاره د ننوتلو لاره ګڼل کېده، خو د یونان ښار دولتونو په یوازي سر د دغه ښار د نیولو زړه نه شو کولای. (د اوسنیو څېړنو پر بنسټ لرغونپوهان د ترکیې شاوخوا په کوچنۍ اسیا کي ځیني سیمي د پخواني ټرای ښار کنډوالې ګڼي). د ایلیاد کیسه د ټرای د ښار له محاصرې څخه پیلېږي، خو دا چي یونانیانو ولي د ټرای د نیولو پرېکړه وکړه باید تر کیسې وړاندي پېښو ته لنډه اشاره وکړو؛ د ټرای پاچا (پریام) پنځوس زامن درلودل (هکتور

Hector) ئې تر ټولو زړور پهلوان او پاريس (Paris) ئې تر ټولو ښکلی زوی وو. د پاريس له زېږيدو سره د خوبونو تعبيروونکو خبر ورکړی وو، چې د پريام دا زوی به هغه ته بدمرغي راوړي، پريام امر وکړ چې هغه د (ايدا) غره ته نږدې په دښته کي يوازې پرېږدي، خو ارباب الانواعو ئې پالنه وکړه او پاريس شپون شو، وخت تېرېده او زلمي پاريس خپله ښکلا موندله، تر دې چې د ښکلا او مينې ښځينه ارباب الانواعو هري يوې (هېرا Hera)، (آتنه Athemee) او (افروديتې Aphrodite) ورته راغلې، چې وګوري پاريس کومه يوه خوښوي، پاريس د ښکلا الهه افرودويتې خوښه کړه، ښکاره ده چې هغه دوې نوري په غوسه شوې او د ټراى د خلکو په وړاندي ئې د کسات اخيستلو قسم واخيست، همدا وو چې يو ځل پاريس Paris يونان ته سفر وکړ، هلته د سپارتا (لاسدمون) د پاچا منلاس (Menelas) مېلمه شو، په مېلمستيا کي ئې د پاچا پر ښکلې مېرمن (هېلن Helene) زړه بايلوده او هغه ئې له ځانه سره ټراى ته وتښتوله. دې پېښې يونانيانو ته پلمه په لاس ورکړه ، چې پر ټراى يرغل وکړي، منلاس او ورور ئې (اګامنون) له دوولس سوه جنګي بېړيو او سلو زرو سرتېرو سره مخ په ټراى وخوځېدل، په جګړه کي د لرغوني يونان نامتو پهلوانان اشيل (آخيليوس Achilles)، (اوليس Ulysse) (اژاکس Ajax) پالامد، ديومد، ماکاوون، او نور هم شامل ول، د يوناني لښکرو مشري اګامنون او ورور ئې منلاس (د هېلن خاوند) کوله. ارباب الانواع هم پر دوو ډلو وېشل شوي ول، ځينو ئې د ټراى د خلکو ملاتړ کاوه او ځينو نورو ئې هم د يونانيانو، عجيبه دا ده، چې تر ټولو لوی رب النوع (زئيوس) د ټراى پلوي ول.

د اشيل مور (تېتيس Thetis) خبره وه چې زوی ئې په دې جګړه کي وژل کيږي، ځکه ئې هغه له دې جګړې ځخه پټ کړ، ان چې د ښځو جامې ئې ورواغوستلې، خو بله وړاندوينه دا وه، چې دا جګړه پرته له اشيل ځخه ناکامېږي، ځکه خو اوليس په خپله هوښياری هغه وموندو او دې ته ئې اړ کړ، چې د ټراى جګړې ته راشي. يونانيان د ټراى ښار ساحل ته ورسېدل، تر جګړې وړاندې د اشيل معشوقه (بريزئيس Briseis) د اګامنون په لمسونه وتښتول شوه، دې کار اشيل په غوسه کړ او له جګړې ځخه ئې لاس واخيست، همدا چې جګړه پيل شوه د ټراى لښکر ، چې مشري ئې د پريام پاچا زوی هکتور کوله، يونانيان تر سختو ګوزارونو لاندي راوستل، ان تر دې چې دوی ئې خپلو بېړيو ته وروتنبول، بده جګړه روانه وه، يونانيانو اشيل ته جرګې ورولېږلې چې جګړې ته راشي، خو هغه لا هم په غوسه وو، بالاخره يونانيانو اشيل ته د هغه ګران دوست او نازولی شاګرد (پاتروکل) ورولېږه چې راضي ئې کړي، اشيل پخپله جګړې ته رانه غی، خو پاتروکل ته ئې اجازه ورکړه چې د ده پر ځای وجنګېږي او ان چې د اشيل ځانګړې وسله هم وکاروي. پاتروکل د اشيل په ځېر جامې واغوستې او د هغه وسله ئې پورته کړه. يونانيانو زړه واخيسته، سخته جګړه پېښه شوه ، هکتور فکر وکړ چې له اشيل

سره مخامخ دئ په زړه ورتیا وجنګېده او پاتروکل ئې وواژه. دې پېښې اشیل سخت په غوسه کړ او د خپل ملګري د کسات له پاره ئې جګړې ته ملا وتړله په یوه سخته جګړه کې ئې خپل سیال هکتور د ټرای ښار تر دېوالونو لاندې وواژه او د ټرای لښکر ئې ښار ته وتنباوه، بیا ئې د هکتور مړی په خپله جنګي ګاډۍ پوري وتاړه او تر ښار ئې ګرد وڅرخاوه. کله چې خپل ځای ته راستون شو، په نیمه شپه کې ئې د ټرای پاچا پریام ولیده چې د ده لیدو ته په پټه راغلی او د خپل زوی هکتور مړی غواړي. اشیل ځوانمردي وکړه نه یوازې دا چې پریام ئې و نه واژه، بلکې د هغه د زوی مړی ئې هم ورکړ، د ټرای خلکو هکتور او یونانیانو پاتروکل خښ کړل. د ټرای کلابندي لس کاله اوږده شوه، په دې منځ کې اشیل د پاریس په زهرجن غشي ولګید او ومړ، په جګړه کې ارباب الانواعو هم ونډه واخیستله دوی هم په خپلو منځونو کې وجنګېدل، خو کار د اولیس هوښیارۍ یوې خوا ته کړ. د دې تر څنګ چې د سوالګرو په جامه کې ټرای ته ننووت او د دغه ښار د مقاومت طلسم (پالادیوم) ئې راغلا کړ، یونانیانو ته ئې د لرګین اس د جوړولو فکر هم ورکړ. د لرګین اس کیسه خو داسې وه، چې یوه ورځ یونانیانو د یوه ستر اس په جوړولو پیل وکړ او تر بشپړولو وروسته ئې د هغه په خېټه کې خپل نامتو پهلوانان ځای پر ځای کړل، بیا ئې خپلو خېمو ته اور واچاوه او پاته لښکر په بېړیو کې له کځ څخه وخوځېدل، لرګین اس د کلا د دېواله شا ته ودرول شو، سهار چې د ټرای

خلک راپاڅېدل، څه ګوري، چې یونانیان تللي او یوازې یو لرګین اس د کلا شا ته ولاړ دئ، د ټرای سرتېري او خلک له اسه راتاو شول، حیرانتیا او شک او بیا بېلابېل ګومانونه کېدل، ځینو ویل یونانیان مات شول او دا اس ارباب الانواعو د دوی د بریا د نخښې په توګه رالېږلی دئ، د ټرای یو هوښیار مشر (لاکو ئون) خپل نیزه د اس د ګېډې خوا ته وروویشته او پوه شو، چې داس ګېډه تشه پر ښوول شوې، ځکه ئې شک وکړ، چې د دې تر شا کوم څه شته، خلکو ته ئې وویل: پام کوئ! دا د چل او دروهې نخښه ده. خو ناڅاپه له سیند څخه دوه غټ ماران راووتل او لاکوئون او د هغه دوه زامن ئې ووژل، خلکو ته دې پېښې لا پسې باور ورکړ، چې اس د ارباب الانواعو ډالۍ ده او دوی نور د یونانیانو له شره بېغمه شوي دي. بس په خوشالۍ ئې د ښار دروازې پرانیستې او اس ئې ښار ته ننه ایست، د خپلې بریا جشن ئې پیل کړ، نڅاوې او ګډاوې شوې، د ښار ساتونکیو هم په جشن کې برخه واخیستله چې په همدې ګڼه ګونه کې د اس له ګېډې څخه یوناني جنګیالي او په هغو کې اولیس راووتل، د ښار دروازې ئې د خپلو لښکرو پر مخ (چې بېرته راګرځېدلي ول) پرانیستې او په دې ډول یوناني لښکر تر لس کلنې کلابندۍ وروسته وریا ښار ته ننوتل، وژل او ورانول ئې پیل کړل، د ټرای ودان او ښکلی ښار لمبو پر سر واخیسته، له پریام پاچا نیولې تر عادي نارینه ښاري ټول ووژل شول او ښځې ئې د یوناني سرتېرو او پهلوانانو تر منځ د مینځو په توګه ووېشل

شوې. د پریام پاچا کونډه هکوبه اولیس ته ورسېده، لور ئې کساندرا د اګامنون مینځه شوه، بله لور ئې (پولیکسن) چي د اشیل په برخه رسېدلې وه د هغه پر قبر ئې راځملوله او سر ئې ورپرې کړ، د هکتور کونډه (اندرومارکي) ئې بنو پټولم ته ورکړه، د هکتور ماشوم زوی استیاناکس ئې د کلا له لوړ دېوال څخه راوغورځاوه او کله چي ئې سر پر ځمکه ولګېد نو ځای پر ځای ومړ، یونانیانو ورته له مستۍ څخه کټ کټ وخندل. هېلن بیرته د منلاس ښځه شوه او چي سپارټا ته ورسېده نو خلکو هغه د یوې الهې په توګه وپېژندله. ټرای تباه شو، یوه لویه غمیزه پېښه شوه، خو یونانیانو هم ښادي و نه کړه، ارباب الانواع د دوی د ظلم او نادودو په خاطر په غوسه ول او کله چي دوی بېرته ستنېدل، په لاره کي له ډول ډول عذابونو او ناخوالو سره مخامخ شول، تر هر څه وړاندي یو لوی سمندري توپان راوالوت او دوی ئې سره تیت و پرک کړل (اژاکس) ډوب شو، د منلاس بېړۍ ډوبې شوې او توپان مصر ته ورساوه، چي له هغه ځایه ایله اووه کاله وروسته کور ته ستون شو. اګامنون چي کور ته ورسېده، څه ګوري، چي ښځي ئې د ده له وراره (اګیست) سره یارانه جوړه کړې ده، اګامنون په غوسه شو خپل وراره، ښځه او خپله مینځه کساندرا (د ټرای پخوانۍ شاهزادګۍ) ټول ئې ووژل. خو په دې منځ کي تر ټولو تریخ او ستومانه برخلیک د (اولیس) وو، چي له سختو کړاوونو سره مخامخ شو. د هومر بل ستر اسطوره یي داستان (اوډیسې) د دغه یوناني پهلوان د همدغه سفر کیسه او برخلیک دئ، چي وروسته به ئې لنډیز ولولئ. خو اوس راځئ، چي د ایلیاد له متن څخه د اشیل او هکتور د جګړې د پیل د یوې برخي پښتو ژباړه ولولو:

"... کله چي دواړه جنګیالي (اشیل او هکتور) یو بل ته ورسېدل، نو هکتور وویل: اې د (پله) زویه! داسي مه ګڼه چي زه له تا څخه تښتم؛ دا چي درې ځله د پریام له پراخ ښار څخه په منډه راتاو شوی یم او هیڅکله په منډه نه یم درنږدې شوی همدا مي بس دي، اوس مي نو زړه راته وایي، چي له تا سره جګړه وکړم. اوس نو باید یا ووژل شم او یا له تا څخه ژوند واخلم. خو تر نښتي وړاندي راځه چي دواړه لوړه وکړو او ارباب الانواع شاهدان کړو، چي زموږ د پیمان تر ټولو بختور شاهدان اوسي. که زیئوس زه بریالی کړم او که ئې پر ما دا ولوروله چي د ورځي روڼا ستا له سترګو څخه واخلم (ودي وژنم) نو د یوه مېړه او ځوانمرده جنګیالي په توګه به ستا له مړي سره چلند وکړم، یوازي به په دې خوشاله یم، چي ستا اسماني زغره او وسله درڅخه واخلم، خو مړی به دي یونانیانو ته وروسپارم. نو ته هم لوړه وکړه، چي که ته بریالی شوې نو له ما سره به هم همداسي کوې.

اشیل په ډېره غوسه ورته وکتل او ویې ویل: اې هکتوره! اې بدمرغه دوښمنه! خوله دي وتړه، او د هیڅ پیمان په اړه مه غږیږه! د زمري او بنیادم تر منځ هیڅ پیمان نشته او د لېوه او وري تر منځ ملګرتیا ناشونې ده، دوی په یوه تلپاته جګړه کي دي. د روغي هیڅ پیمان به زما او ستا تر منځ نه وي. تر دې

وړاندي چي کوم پيمان وتړو، بايد د جګړې د واکمن تنده د يوه په وينو خړوبه کړو، د خپل ژوند ټوله مستي دې راټوله کړه، خپله زړورتيا دې راوغواړه، ځکه اوس ورته اړ يې، نور نو د تېښتي لاره نشته، زما دا نېزه به د آتني په مرسته ژر تا له پښو وغورځوي او ته به د هغو نادودو جزا ووينې، چي زما د ملګرو په حق کي دې درلودلې، چي ستا توري ستا په ړندې غوسې کي د هغوی ژوند ورڅخه واخيسته. دا ئې وويل او خپله نېزه ئې چي راتاو کړې وه د هکتور خوا ته ورووېشته، نيزې هوا وڅيرله او هکتور خپل زنګون پر ځمکه کېښېښود..." (ايلياد: ۶۶۳ مخ).

هو اشيل په دې جګړه کي خپل زړور سيال هکتور وژني، مړی ئې په خپله جنګي ګاډۍ پوري تړي او په ډېر سپکاوي ئې له ځانه سره وړي. ژر د هکتور سپين ږيری پلار د ټراي پاچا پريام د يونانيانو د لښکر منځ ته په پټه ورننوځي او ځان د اشيل هستوګنځای ته رسوي، چي له هغه څخه د خپل زوی مړی وغواړي، پريام له خپل دوښمن څخه د رحم غوښتنه کوي او د خپلو خبرو په يوه برخه کي وايي:

"... اې اشيله! چي د ارباب الانواعو په څېر يې! خپل پلار درپه ياد کړه، چي زما په څېر زوړ او ېوسه دئ، د خپل ژوند د پای شېبو ته رسېدلی دئ، ښايي ګاونډيو به ئې ځواک کلابند کړی وي، پرته له دې چي داسي څوک ولري، چي مرسته ورسره وکړي او له څېرمه ګواښونو څخه ئې وژغوري. که خبر شي، چي ته ژوندی يې نو زړه به ئې د هيلو له خوشاليو څخه ډک شي او هر ځل به په دې خوښۍ وياړي، چي خپل زوی به بيا ووينې. خو زه! هو زه بدمرغه، چي تر ټولو ډېر بدمرغه يم، چي په ښکلي او لوړ ټراي کي مي د نرۍ نوموتي پهلوانان وزېږول، خو اوس هيڅوک نه دي راپاته چي درد مي راکم کړي. کله چي يونانيانو پر ټراي يرغل کاوه ما پنځوس زامن درلودل، نولس تنه ئې له يوې مور څخه زېږېدلي ول او نور ئې زما په دربار کي زما له مينځو څخه ول، د هغوی ډېره برخه د (ارس) له لاسه پوپنا شول، يوازي يو ئې راپاته وو چي د هغوی کسات ئې اخيستلای شو او زموږ د ستر ښار د دېوالونو ساتنه ئې کوله او دا وروستی هم تا په داسي يوه جګړه کي ووژه، چي هغه د خپل هيواد د ساتني له پاره تر سره کړه، هغه خپل ارزښت د خپل ټاټوبي په ساتنه کي وښوده، هو! زما هکتور، چي ستا په لاس ووژل شو. او دا دئ زه د هغه له پاره ستاسي د لښکر منځ ته راغلی يم ، هغه ګرانبيه او ارزښتمني ډالۍ چي مي درته راوړي دي، واېې خله او د زوی مړی مي راوسپاره!

اې اشيله! ارباب الانواعو ته په قدر وګوره! او پر ما زړه وسوزوه، بيا دې پلار درپه ياد کړه.

ارمان ارمان چي څومره بدمرغه يم. ما هغه څه وکړل، چي هيڅ بل بنيادم لا تر اوسه داسي نه دي کړي. هو! ما هغه لاسونه خپلو شونډو ته نږدې کړل او ښکل مي کړل، چي زما د زوی ويني ئې بهولې دي..." (ايلياد: ۷۳۴).

د هر بل اسطوره يي اثر په توګه ايلياډ له ماوراء الطبيعي ارادو او پېښو څخه ډک دئ. د ګڼو معلولونو عاملونه غير بشري دي، يوناني ارباب الانواع په پېښو کي لاس لري، تر ټولو ستر رب النوع (زيئوس) د دې جګړې يو اړخ دئ، د هغه مېرمني او د کورنۍ غړي ټول بوخت دي، هېرا (د زئيوس مېرمن او د ښځي او مېړه تر منځ

د ګډ ژوند الهه)، پوزئېدون (د سیندونو څښتن او د زیئوس ورور)، اتنه (د تالندي او بربښنا الهه)، هفایستوس (د اور او اهنګرۍ څښتن)، هرمس (د باد څښتن)، ارس (د بادونو او توپانونو څښتن)، فوبوس (د لمر او رڼا څښتن)، ارتمیس (د ځمکې، چینو، سیندونو او ډنډونو خاوند)، افرودېټ (د ګلونو، سمسورتیا، باغونو، ښکلا، پسرلي او میني الهه)، هادس (تر ځمکي لاندي نړۍ څښتن)، دمتر (د کرني څښتن)، کوره (د دمتر لور او د راشنه کېدو الهه)، دېونیزیوس (د انګورو او شرابو خاوند)، رئا (د کرونوس خور او ښځه چي د ګڼو نورو ارباب الانواعو مور ګڼل کېده)، نره (د ارامه سمندرونو الهه) او نور ارباب الانواع ټولو په دې جګړه کي خپله ونډه درلودله.

په ګڼو برخو کي کله چي د زیئوس مخالف ځواکونه د هغه د ارادې پر خلاف څه کول غواړي، نو لومړی د ده د تېر ایستلو چاره لټوي، د بېلګي په توګه یو ځل پوزئېدون د دې له پاره چي د ټرای د لښکر په وړاندي د یوناني لښکر ملګرتوب وکړای شي، هېرا هڅوي چي ځان سینګار کړي او زیئوس له ځان سره بوخت کړي، همداسي کېږي هېرا زیئوس لوبوي او بالاخره د هغې په پسته او خوږه غېږ کي ویده کېږي، پوزئېدون له همدې موقع څخه ګټه اخلي او جګړې ته ننوځي، وروسته کله چي زېئوس راویښیږي، نو له دې چل څخه تر خبرېدو وروسته پر دواړو (هېرا مېرمن) او (پوزئېدون ورور) باندي غوسه کېږي، پخپله د ټرای لښکر ته د مرستي په نیت وردانګي.

خو دا حالت تر پایه نه پاته کېږي، په شلم سرود کي ګورو چي زئېوس ټول ارباب الانواع راغواړي او په یوه ګډه ناسته کي دوی ته ازادي ورکوي چي هر څوک له هر چا سره چي خوښه ئې وي ملګرتیا کولای شي.

د عادي داستانونو اساطیري کیسو تر منځ یو توپیر دا دئ، چي په عادي داستانونو کي ټولي پېښي انساني دي، په بله ژبه دا انسانان دي چي د پېښو عامل ګرځي، خو په اسطورو کي تر انسان پورته ځواکونه یا (ځواک) دئ چي د پېښو تګلوری بدلوي او ښکاره ده چي له دې پېښو څخه یو شمېر ئې انسانانو ته د وړاندوینې وړ نه وي. په یوناني ادبیاتو کي د تراژیدۍ یوه ځانګړنه دا ده چي هلته د یوه باارادې او پیاوړي انسان د غوښتنو او کړنو پر خلاف په اسمانونو کي داسي پرېکړي شوي وي، چي دی ورڅخه نه وي خبر، ځمکني انسانان چي هر څومره په ځواک او توانمندۍ وغواړي خپل برخلیک سم کړي، خو داسي پېښي ورپېښېږي چي د ده د غوښتنو پر خلاف وي، د تراژیدي یو پېژاند همداسي دئ. په ایلیاد او نورو یوناني اسطورو کي ګڼي داسي پېښي ګورو چي د ارباب الانواعو د خپلمنځي سیالیو، حسادتونو، کرکو او مینو له کبله پېښي رامنځته کېږي او پر انسانانو یا انساني نړۍ ورتپل کېږي. په ایلیاد کي د اشیل پهلوان برخلیک لا له وخته ټاکل شوی دئ، چي د هکتور تر وژلو وروسته به دی هم پر ښنه ویشتل کېږي او مري به، عجیبه دا ده چي دی هم په خپل برخلیک خبردئ.

ګڼي داسي پېښي هم شته چي عادلانه پایلي نه لري، داسي ډېر لیدل کېږي، چي ارباب الانواع د ظلم پر خوا درېږي، مانا د هغه تصور پر خلاف چي فکر کېږي؛ اسماني موجودات او

ځواکونه باید تل د حق او عدالت پلوي وکړي، داسي نه ده په دي اسطورو کي ګورو چي ارباب الانواع هم د انسانانو په څېر د حسادت، خپلمنځي سياليو، کرکو او مينو له کبله چل ول، دوکې او ان جنايت ته لاس غځوي، انسانان هم د دوی له دغو سياليو او ناسمو پرېکړو څخه په امان کي نه پاتېږي او ډېره څله داسي ښوول کېږي، چي په انساني نړۍ کي د بدو پېښو لامل هم د دوی همدا بدې ارادې دي . د ايلياد کيسه په يوه ستر ناورين پای ته رسېږي، هغه ناروا او تېری چي له ټرای مېشته خلکو سره کېږي، د تاريخ يو ښېلګه ئې ناورين دئ، خو ګورو چي په دې ناورين کي د هغو ارباب الانواعو لاس او حضور دئ چي پخوانيو يونانيانو پرې باور درلوده.

په هرصورت ايلياد د بشريت په تاريخ کي يوه تلپاته اسطوره يي افسانه ده چي د يونان او لوېديځ تمدن پر لويه برخه اثارو او افکارو ئې خپل اغېز تر نن ورځي پوري پرې اينښی دئ. د لرغوني يونان باورونه، افکار او ټولنيز جوړښت اساسات په دې اسطورو او کيسو يا پېښو کي ريښه لري. په ايلياد کي ګڼ شمېر اسطورې هاغه دي، چي لرغونيو يونانيانو پرې باور درلوده، کېدای شي د دغو منظومو د شاعر (هومر) تخييل به د ګڼو لرغونيو اسطورو پښه دې کيسو ته ورننه ايستلي وي. څوک څه خبر دي، چي د ټرای جګړه به يوازي يوه انساني پېښه وه، يو عادي جګړه، چي د پاچايانو حرص او ميني رامنځته کړې وه او خلک پکښې وژل شوي وي، خو دا شاعران يا هم د کيسو راويان ول، چي د ارباب الانواعو لاس او پښه ئې پکښې شامله کړي وي، خو يو څه چي روښانه ده هغه دا ده چي تر ايلياد او اديسې وروسته ګڼ کرکټرونه د يونان پر اساطيرو ورزيات شول. مانا دغه ستري افسانې نه يوازي موږ ته د لرغونيو اسطورو هويت، کړه وړه او ځرنګوالی راپېژني، بلکي پخپله د نويو او نورو اسطورو د رامنځته کېدو لامل ګرځي. هغه نومونه، پېښې او کرکټرونه چي تر دې کيسو مخکي لا چا نه پېژندل اوس د همدې کيسو په مرسته په مشهورو تاريخي او تلپاته بشري اسطورو بدل شوي دي. د ټرای لرګين اس اوس يوه مشهوره اسطوره ده چي په ادبياتو او سياست کي د مکر، چل او دوکې د سېمبول په توګه پېژندل کيږي. همدا راز (هېلن) د ښځينه ښکلا، مکر، ميني، اغېز هرځايي توب او بولهوسۍ سېمبول ده چي پېړۍ پېړۍ وروسته ئې په ادبياتو کي د بيا حضور نخښې وينو، همدا هېلن له همداسي ځانګړنو سره د الماني ګويته په (فاوست) کي بيا راژوندۍ کيږي او مفستيو (شيطان) د هغې په مرسته د فاوست برخليک تباه کوي.

د ايلياد او اوديسې پېښې د ګڼو اسطوره يي کيسو د راپنځېدو له پاره سوژې رامنځته کړې، د زاړه يونان او روم ډرامه ليکونکيو پرې ګڼې ډرامې جوړي کړې، چي يوه ئې د اروپيدس نامتو ډرامه (د ټرای ښځي) نومېږي، چي تر جګړې وروسته د ټرای د اسيرو شويو مېرمنو تراژيدي تمثيلوي. (له نېکه مرغه دغه شهکار ډرامه پښتو شعر ته ما (لېوال) د اروانښاد استاد اسداسمايي په مرسته راژباړلې ده).

نور بيا ...



سردارولي پښتون زوی

# مرحوم عزيزالله واصفي او کورنۍ ئې

پښتو کوڅه پر کوڅه گـرځي پښتانه لټوي
پښتون پر مخ منډي وهي چي مادي نه لټوي
(عزيزالله واصفي)

***

د کندهار ولايت د ارغسان اولسوالۍ د بلا ژړي ناوې، په ټېسن کلي کي د زين العابدين په نامه يو ځايي خان اوسېدی چي په ختړه الکوزی وو. نوموړي دوه خورا نامتو روښانفکره زامن درلودل چي آزاد خان او محمدعظيم خان نومېدل. د ازاد خان زوی مولوي احمد جان تاجر د امير عبدالرحمن خان د دربار له مقربينو څخه وو چي په اداري او علمي چارو کي ئې لوی لاس درلود، په ځانگړي ډول ئې د انگرېزانو له دوهمي ماتي او وتلو وروسته د قاضيانو په روزنه کي ډېره ونډه درلوده. مولوي احمد جان د افغانستان د اداري او قضايي جوړښت بنسټگر بلل کېږي.

نوموړي د امير په غوښتنه "اساس القضاة" وليکه. اساس القضاة کتاب په ۱۳۶ قاعدو کي د قاضيانو د لارښووني او د شرعي محکمو د سمبالتيا په نيت ليکل سوی او په ۱۳۰۳هـق کال د صفرالمظفر پر يوولسمه د کابل په دارالسلطنة مطبعه کي چاپ سو، چي دوهمه پلا بيا په ۱۳۱۱ق کال کي چاپ سو. د نسخې خطاط ئې ميرزا عبدالرزاق دهلوي دئ او هم ئې د دولتي ادارو د سمبالتيا له پاره د «دولتي قواعد» په نامه کتاب په ۱۳۰۹ق/۱۸۹۱ع کال وليکی.

مولوي صاحب د پښتو او دري ژبو ډېر ښکلي شاعر هم وو چي يو ښکلي ديوان هم لري. دغه نامتو عالم په ۱۹۰۲ع کال کي د

نري رنځ د ناروغۍ له امله مړ او په کندهار کې د صوفي صاحب د مزار تر څنګ خاورو ته وسپارل سو.

د مولوي تاجر له زامنو څخه مولوی محمدسرور واصف د وخت معتبر عالم وو، واصف د مشروطيت غورځنګ بنسټګر او د دې ټولنې د اخبار (سراج الاخبار)[۱] منشي هم وو.

د امير حبيب الله خان په وخت کې علماوو يوه ټولنه درلوده چې (جمعيت تاليف فتاوی سراج الاحکام) نومېده. د دې فتاوی د ترتيب، ليکنې، احکامو او مسايلو د استخراجولو، څېړنې او ژباړې کار پنځوسو علماوو ته سپارل سوی وو. د «سراج الاحکام» د فتاوی کار د پياوړو علماوو تر څارنې لاندې تر سره کېده چې ګل اخوندزاده احمدزی، د چهار باغ (لغمان) مير صاحب مولوی غلام محمد[۲] مولوي عبدالروف اخوندزاده خاکي[۳] مولوي عبدالرزاق اندړ، مولوي احمد جان اخوندزاده توخی، ملا لالاګل اخوندزاده، ارغنديوال او نورو پکښې ګډون درلود. په دې علماوو کې مولوي واصف او مولوي قيام الدين نيازي په کښته کچه د مفتي دندې درلودې.



مرحوم عزيزالله واصفي

د واصف او امير اختلاف د مشروطيت له امله وو، چې د دې ټولو هنرونو سره – سره بيا هم امير حبيب الله خان مولوي واصف و نه باخښه او په ۱۳۲۳ ل کال ئې نوموړی د خپل ورور سعدالله خان او اکا د زوی قيوم خان الکوزي[۴] سره په شېرپور کې دوې/درې ورځې زنداني او همدلته د غونډۍ پر سر د توپ خولې ته وتړل. هغه وخت چې واصف ئې توپ ته تاړه هغه د کاغذ پر يوه پاڼه وليکل: په داسي حال کي چې په امنت باالله وملائکته... مي پوره ايمان درلود، دامير له خوا ووژل سوم[۵].

مولوي واصف په پښتو او دري شعر وايه او يو کتاب (تاريخ ادريسيان و حموديان و موحدين افريقای شمالی) ئې له عربي څخه ترجمه کړی دئ چې علامه رشاد ئې خطي

نسخه د افغانستان په ملي آرشيف کي رانښيي[۶].

د یادولو وړ ده چي د تاجر پاته بل زوی چي عبدالرحمن خان نومېدی د شهرپور په بندي خانه کي عمرابد بندي کړ، چي بالاخر په همهغه بندي خانه کي وفات سو.

د عبدالرحمن مشر زوی عبدالرشيد خان نومېدی او الکوزی تخلص ئې کاوه؛ په خپل عصر او زمان کي په ملي سطحه د کندهار د قومونو يو مخور او پېژندل سوی مشر تېر سوی وو. کله چي په سقاوي کي له نادر خان سره ملګري او په پوره مېړانه ئې ورسره مرسته وکړه، نادر لږ وخت وروسته د شورا معين (د اولسي جرګې رئيس) وټاکه. عبدالرشيد خان درې ښځي درلودې چي مشره ئې فروغ سلطان[۷] بله ئې ښېنظره[۸] او حکم بي بي[۹] نومېدې.

د عبدالرشيد خان پنځه زامن ول چي عبدالقدوس خان واصفي، عبدالفريد رشيد (د باندنيو چارو وزارت د فرهنګ پخوانی رئيس)، جګړن عبدالحکيم رشيد (د حربي پوهنتون پخوانی استاد)، عبدالنعيم رشيد (په المان کي ډاکټر) او عزيزالله واصفي نومېدل.

اوس به پر عزيزالله واصفي څه ناڅه ورغېږم.

عزيزالله په ۱۳۰۷ ل کال د کندهار په دوهمه ناحيه کي د الکوزو په کوڅه کي زېږېدلی دئ. خپلي لومړنۍ او منځنۍ زده کړي ئې په کندهار او لوړي زده کړي ئې د کابل پوهنتون د ادبياتو په پوهنځي کي سر ته رسولي.

مرحوم د ډيموکراسۍ په لسيزه کي د ارغسان او ارغنداو د خلکو له خوا د اولسي جرګې د استازي په توګه وټاکل سو. وروسته بيا د کندهار د ښاروالۍ مرستيال سو، د داودخان تر کودتا (۱۷ جون ۱۹۷۳ع) وروسته د ننګرهار والي وټاکل سو. په ۱۹۷۵ع



مرحوم عبدالرشيد خان الکوزی

کال د داودخان له خوا د کرهڼي د وزير په توګه مقرر سو. په ۱۹۷۷ع د داود خان په کابينه کي د لويي جرګې د رئيس په توګه وټاکل سو، په دا وروستيو کي د مرحوم ظاهر شاه له سلاکارانو څخه وو. مرحوم د هيواد يو داسي شخصيت وو چي د هيواد په معاصر تاريخ او په ځانګړې توګه د شلمي پېړۍ په بشپړه نيمايي (۵۰ کاله) کي د بېلابېلو سياسي او

ټولنیزو پېښو څخه اغېزمن کس وو.

ده د سیاست تر څنګ له ادب سره هم راسه-درسه درلوده، چې په دې لړ کې ئې د پښتو د نامتو شاعر شمش الدین کاکړ دېوان په کابل کې چاپ کړ، واصفي صاحب ډېره قوي حافظه درلوده او اکثراً به ئې په خپلو صحبتونو کې د قرآن عظیم الشان آیاتونه او یا کلاسیک اشعار خاصتاً بیا د بېدل صاحب بیتونه ویل. په اسلامي فقهي مسائلو هم څه نا څه پوه وو. له واصفي صاحب څخه څلور زامن عزت الله واصفي (د فراه پخوانی والي ۲۰۰۹ع)، بشیراحمد واصفي، نعمت الله واصفي، وحیدالله واصفي پاته سول.

د دې کورنۍ وروستی علمي شخصیت ډاکټر نثار احمد صمد دئ چې څېړونکی، ژباړونکی او لیکوال دئ. دی د حاجي عبدالصمد خان زوی، د غلام احمد خان لمسی، عبدالرحمن خان کړوسی او د مولوي احمدجان تاجر کوسی دئ. کاکا عبدالرازق چې د کندهار ولایت پخوانی اداري مدیر وو، هم د دې کورنۍ سره اړه لري چې د واصفي صاحب دا کازوی کېږي.

د واصفي صاحب یوه خاطره پوهاند رسول باوري صاحب څو کاله دمخه د ده له خولې کښلې وه چې: "... داود خان ته په زرګونه جریبه مځکه د خپل اکا هاشم خان څخه په میراث پاته وه، او دا مځکه ئې د لومړي جمهوري نظام په دوهم کال پر دوو برخو ووېشله، لومړۍ برخه چې زیاته وه د ملي دفاع وزارت ته د ټولو اداري او قانوني مراحلو تر وهلو وروسته د هر ډول مادي او یا معنوي امتیاز پرته تسلیم کړه، دوهمه برخه ئې هغو بزګرانو (کښته ګرو) ته ورکړه چې د ډېرو کلو راهیسي ئې پر هغه مځکه کار او کښت کاوه. د مرحوم واصفي په وینا چې هغه مهال نومړی د کرهڼي چارو د وزارت دنده درلوده. د دې ملکیت وېش او ورکړه د دوو اړخو ستونزه درلوده، لومړی دا چې د داود خان د کورنۍ یو شمېر دوستانو به ویل چې په دې مځکو کې د داود خان د اولادونو حق سته، دا باید د داود خان د اولادونو تر منځ ووېشل سي، نه دا چې د دفاع وزارت او یا بزګرانو ته ووېشل سي. دوهمه ستونزه د ملکیت اداري مراحل ول. دولتي ادارو ته د مځکي ورکړه د مالک او یا مالکانو تر شرعي توافق ورسته دا اجرا وړ ګرځي.

د دې دواړو ستونزو د حل په نیت مې په پیل کې د شخصي اړیکو پر بنسټ هڅه وکړه چې داودخان دې ته وهڅوم چې د خپلي کورنۍ سره په هیواد کې د روان دود پر بنسټ د وېش چاري تر سره کړي، خو داود خان دا و نه منل او پر خپله وینا ودرېدی چې زما د مځکي شل جریبه هغو بزګرانو ته ورکړئ چې همدا اوس کار پکښې کوي او تر شلو جریبو زیاته مځکه دي د دفاع وزارت په واک کې ورکړل سي. تر هغه وروسته می شهید داودخان ته د هیواد د دولتي مشر په توګه دا ستونزه په رسمی توګه وړاندي کړه.

شهید داود خان د مسئلې د حل په نیت د خپلی کورنۍ ټول غړي او نږدې دوستان راوغوښتل او څو ورځي ئې په پرله پسې توګه موضوع د کورنۍ د غړو سره مطرح کړه او هغوی ئې دې ته اړ کړل چې د مځکي ورکړي

ته حاضر سي. د داود خان تر ټولو تکراري دلیل دا وو چې زما د نیکه څخه را پاته مځکه ټوله اته جریبه مځکه ده، نو همدغه اته جریبه مځکه زما کورنۍ حق لري، خو هغه میراث مځکه چې ما ته پاته سوې ده، هغه باید وویشل سي.

داود به د خپلې کورنۍ غړو ته همدا ویل چې تاسي باید خپل ځانونه په داسې مسلکي چارو بوخت کړئ چې هر مهال ستاسي د ژوند تضمین وکړای سي، بې له دې چې تاسي د پلار او یا نیکه په ګټلې ژوند وکړی. هغه به خپلو اولادونو ته ویل چې که تاسي د یوه کار وړتیا ولری، په دولت او حکومت کې تاسي ته د کار زمینه پیدا کېږي، په هغه صورت کې تاسي اړ نه یاست چې د پلار ګټلي ته د طمعې ستر ګې ونیسی. په دولت او حکومت کې ستاسي کار هم ویاړ دئ او هم ستاسي د سالم ژوندانه تضمین دئ.

په پای کې د کرهڼې وزارت په وړاندیز د جمهور رئیس حکم په دې ډول ولیکل سو چې: "د کرهڼې وزارت ته حکم کېږي چې د محمدداود ولد محمد عزیز خان په نوم ثبت سوې، ټوله مځکه دي لومړی هغو بزګرانو ته شل –شل جریبه وویشل سي چې هغو تر اوسه کار پر کاوه او پاته نوره ټوله سي ...".

لمنلیکونه:

۱ – مولوي واصف د سراج الاخبار په لومړی تاسیس کې د دې جریدې محرر او په اوسنۍ اصطلاح مسئول مدیر وو، وروسته بیا د (سراج الاخبار) ټولنې غړی سو. سراج په عربي ژبه کې څراغ ته ویل کېږي چې دغه توري د امیرحبیب الله په زمانه کې زیات دود وموند، په خپله امیر ته هم د (سراج الملة والدین) لقب ورکړه سو، نو اخبار هم د (سراج الاخبار) په نامه یاد سو او هغه فتواوي چې د ده په وخت کې ولیکل سوې هم د (سراج الاحکام) په نامه یادي سوې او آن په جلال اباد کې د نوموړي ودانه کړې ودانۍ د (سراج العمارت) په نامه یاده سوه. هندیان زموږ په اړه وایي: "افغانان د یوه شي په مینه کې ډېر افراط کوي او دغه راز دوی تقلیدي ذهن لري، هره شی چې مخته روان وي هغه ته خلک هڅوي او نوي او متبادل شي ته لږ مېلان ښکاره کوي، په دوی کې هر نوی شی په ډېر وخت سره دودېږي او کله چې دود سي بیا ئې له منځه تګ هم هغوني وخت غواړي څوني ئې چې دودولو غوښت".

۲– میر مولوی غلام محمد چهارباغي (لغمانی) د هیواد د نامتو علمي او تاریخي شخصیت میر محمدقاسم پلار وو، میر محمدقاسم په سراج الاحکام فتاوی کې د محرر دنده درلوده. د حبیبیه مدرسې مدرس هم وو، د مطبوعاتو لومړنی رئیس او د ډېري تجربې او سیاسي څیر کتیا څښتن لیکوال وو، میر قاسم د وخت د واکمنو له لوري ډول– ډول شکنجې لیدلې وې او په وار – وار زندان ته استول سوی وو، میر صاحب په کابل کې د شیخ الهند د (وربښمین دسمال غورځنګ) له ملګرو سره هم نژدې اړیکي درلودل چې د (جنود ربانیه) په نامه یادېده. میر صاحب د نادرخان په وژنه کې تورن وبلل سو، شپاړس کاله ئې د ارګ په زندان کې تېر کړل، تر خوشي کېدو وروسته د شاه محمودخان په

کابینه کې د عدلیې وزیر وو. له څور او ناورینونو ډک ژوند ئې تېر کړ. د ۱۳۵۷ل د حوت په ۲۲مه د کابل په څلرمه کارته کې مړ سو. د نوموړي تاریخي معلومات استاد حبیبي په (جبنش مشروطیت) کې خوندي کړي دي او له نوموړي څخه ډېر اغېزمن ښکاري. وګورئ: د علامه حبیبي (رح) جنبش مشروطیت او د محمدولي څلمي ملي مبارزې.

۳- مولوي عبدالروف خاکي د شهید مولوي عبدالرحیم اخندزاده زوی، د علامه حبو اخوندزاده لمسی، د ملا فیض الله کاکړ کوسی او ملا بابړ کودی وو چې د ۱۲۶۷هـ ق کال په کندهار کې زیږېدلی دئ، نوموړي په عربي، پښتو او پارسي ژبو کې ښه قلم درلود او په همدې درو ژبو ئې تالیفات پرې ایښي دي. د خاکي تر شا دوه ښاغلي زامن پاته سول چې مولوي عبدالرب او مولوي عبدالواسع نومېدل.

۴- مولوي عبدالقیوم خان الکوزی د مولوي نورمحمد خان الکوزي زوی او د مولوي محمد الکوزي لمسی، د محمد عظیم خان الکوزي کړوسی وو. دی هم په دې تور په توپ واولوزول سو، چې د مشروطه غوښتونکو له ډلې څخه وو.

۵- اروابناد غلام محمد غبار لیکي: دغه کاغذ له عبدالهادي داوي سره دئ چې ما ته ئې نه کړ راښکاره. علامه حبیبي کاږي: ما له داوي څخه پوښتنه وکړه هغه ول دغه کاغذ د دوی په کور کې ما د واصف له کورنۍ څخه لیدلی دئ. خو په دې وروستو کې بیا ویل کېږي چې د ده دغه خطي نخسه په ملي آرشیف کې خوندي سوې ده.

۶- (پښتانه مصنفین - دریم ټوک - ۱۰۲ مخ - ناچاپ) د استاد معصوم هوتک له خولې.

۷- فروغ سلطان د کاکا سیداحمد لودین لور د فیض محمدخان لمسۍ او د عبدالرحمن لودین خور وه، عبدالرحمن لودین په سراج الاخبار کې د محرر دنده درلوده. عبدالرحمن لودین په کال (۱۳۰۹ ل) په اووه دېرش کلنۍ کې د نادرشاه له خوا په ناځوانمردانه ډول په شهادت ورسېدی. فروغ سلطان د مرحوم عبدالقدوس خان واصفي مور وه. مرحوم عبدالقدوس خان په ۲۰۱۱ع کال په هالنډ کې پور پرې کړ، د ده زامن محمد نادر، محمدقاهر (د کندهار ولایت د ټاکنو کمېسون پخوانی رئیس) محمد داود او عبدالودود نومېږي، د محمدنادر مشر زوی حاجي احمدشاکر واصفي په هالنډ کې د اریانا افغان هوایي شرکت مسئول دئ.

۸- څرنګه چې د سقاو په جګړه کې عبدالرشیدخان خورا په نره له نادرخان سره ملګرتیا وکړه، نو کله چې سقاو ماته وخوړه نادرخان عبدالرشیدخان کابل ته وروغوښت او د ملي شورا معین ئې وټاکه، وروسته ئې د بچه سقاو کوزده سوې محمدزۍ ښځه (بېنظیره) و عبدالرشید خان ته ورکړه. عبدالرشیدخان له هغې ښځې څخه درې زامن لري چې عبدالفرید رشید، عبدالحکیم رشید، عبدالنعیم رشید نومېږي.

۹ - حکم بي بي: د بلا ژړي وه چې د عزیزالله واصفي مور کېده. حکم بي بي د چنداني مشهوري کورنۍ سره اړه نه درلوده.



ليکوال : ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

# د افغاني هندوانو تاريخچانه

(دريمه برخه)

**دريم – په شلمه پېړۍ کې:**

تاريخي اسناد او شواهد ښيي چې د شلمي پېړۍ په اتو لسيزو کې د افغاني هندوانو (او سيکانو) د ژوند شرايط او کاروبار آن تر نونسمي پېړۍ لا هم ښه آرام او ګټمن وو. پر هغوی مذهبي، سياسي او مالي فشارونه په مراتبو لږ سول. د هغوی آزادانه تګ را تګ، آزادانه تشخيص او آزادانه فعاليت ښه رونق وموند. په بل عبارت، د شلمي پېړۍ لومړني اتيا کاله د افغاني هندوانو په تاريخ کې يو زرين فصل او تر ټولو ښيرازه پړاو دئ چې هيڅ ساری نه لري. خو د ثور تر کودتا وروسته (تر نن پوري) د هندوانو او سيکانو ژوند هم د نورو افغانانو غوندي له مصيبتونو او غمونو ډک سو.

په هر صورت، که يو څه شا ته ولاړ سو نو و به ګورو چي د امير امان الله خان په واکمنېدو او د افغانستان د سياسي استقلال په حاصلېدو سره په حکومت کي د هري عقيدې او جامعې غړو ته مساوي حقوق او فرصتونه مهيا سول. دا لا څه، امير امان الله خان په افغانستان کي يو انقلابي هندوستاني استوګن (راجا مهندرا پرتاب) په ماسکو کي خپل نماينده وټاکی چي هغه د ۱۹۱۹ کال د مې پر اوومه د شوروي روسيې د مشر (لينن) سره وکتل او افغانستان

ته ئې د مرستی په هکله خبري اتري وکړې (هندیان په جنوبي آسیا کې: ۱۴۲ مخ).

دیوان نرنجن داس د هیواد په حکومتي اداره کې یو پیاوړی او ځواکمن هندو وو. هغه په مالي او نظامي چارو کې تجربه لرله او یو قومي مشر هم وو. نرنجن داس ملکي ډګروال او هم د مالیې اخیستلو لوی رئیس وو چې بیا د مالیې وزیر سو. په هغه عصر کې دا معمول وو چې کومو هندوانو به په دولتي اداره او حکومت کې د مامور په حیث دنده لرله نو د فارسي هماغه پخوانۍ کلمه «دیوان» به ئې د هغوی د اداري لقب په حیث ورته استعمالوله. نو نرنجنداس هم له همدې کبله د «دیوان» په لقب او ځار وو.

هغه همدا راز په ۱۹۱۹ کې د راولپنډۍ د سولې په خبرو اترو کې د افغانستان استازی وو او بیا په ۱۹۲۰ کې د میسوري په کنفرانس کې هم د افغانستان د رسمی هیئت غړی وو (هماغه: ۱۴۳ مخ). د دې هیئت مشر خارجه وزیر محمود طرزي، مرستیال ئې د خارجه وزارت د سرحداتو مسئول عبدالهادي داوي او غړي ئې د تجارت وزیر غلام محمد خان، ملکي برګېډ دیوان نرنجن داس، کرنیل پیر محمد خان تره خیلي، په هند کې افغاني مستشار غلام صدیق خان څرخي او یو تحریریه ګروپ وو (نگاهی مختصر به تاریخ معاصر افغانستان: ۲۴۳-۲۴۴ مخونه).

خو لږ تاریخ پوهان (مثلاً میر محمد صدیق فرهنګ) ادعا کوي چې امان الله خان د انګرېزانو سره د خبرو اترو په دغو ناستو کې د نرنجن داس د ټاکلو څخه سیاسي استفاده کوله. یعني دا چې شاه غوښته په دې ډول د هندوستان هندوان د آزادۍ غوښتلو له پاره ولمسوي. د برتانوي هند حکومت د نرنجن داس له ګډون څخه ډیر ناآرامه سو، دا ځکه چې د هندوستان د اکثریت نفوس په توګه ئې د هندوانو پاملرنه افغانستان ته واړوله (افغانستان در پنج قرن اخیر: ۴۹۶ مخ). خو حقیقت دا دئ چې امان الله خان د نرنجنداس له اداري او حسابي استعداد څخه بشپړه خبرتیا لرله، نو ځکه ئې د مالیې د وزارت مقام ور وسپاری.

په هر صورت، امیر امان الله خان د خپلو هندو اتباعو سره ډېره منصفانه او عادلانه رویه کوله او هغوی ئې د خپلو دیني او کلتوري مراسمو، غونډو او لمانځنو له پاره هڅول. کله چې د کابل هندوانو د (تِلک) د مړيني په خاطر د ویر او غم مراسم جوړ کړل نو امیر امان الله خان شخصاً ورغی او د ماتم په دې مراسمو کې ئې ګډون وکړ (هندیان په جنوبي آسیا کې: ۱۴۳ مخ).

د امان الله خان نهه کلنه موده د افغاني هندوانو (او سیکانو) د رنسانس دوره هم بلل سوې ده او هغوی د افغان ملت د انجن د یوې مهمي پرزې حیثیت غوره کړ. امان الله خان ملت ته په خطاب کې وویل چې: «موږ هندو، هزاره، شیعه، سني، احمد زی او پوپل زی نه لرو بلکې ټوله یو ملت یو، یعني افغان».

د ده په عصر کې اکثریت هندوان د کابل، غزني، کندهار اوجلال آباد په ښارونو کې اوسېدل. غبار لیکي چې ولایتی شوراګانو او د کابل معارف انجمن ته د هندوانو یو یو

انتخابي استاخي لاره ومیندل او د ښاري چارو په اداره کې برخمن سول. د ۱۹۲۰ کال د مې د میاشتې د شاهي فرمان له مخې هندو اتباع د جزیې ورکولو څخه آزاد سول او د دې مذهبي اقلیت بې وسه کسان چې پر خپل وخت د جزیې د نه ادا کولو له امله تر څارنې لاندې ول، معاف سول او هم د هغوی د پېژندنې اړونده ژړ رنګه لنګوټې او نور دغسې مشخصات لغوه سول. د هندوانو اولادونو ته په ملکي او نظامي مکتبونو (حبیبیه او حربیه لیسو) کې د تعلیم او په اردو کې د افسرۍ اجازه ورکړه سوه (افغانستان در مسیر تاریخ - ۷۹۴ مخ).

نور نو د هندوانو مذهبي مراسم په ښکاره او آزادۍ سره اجرا کېدل. د لومړي ځل له پاره د دوی په مکتبونو کې هندو ماشومانو ته د نورو مضمونو تر څنګ د دوی د مورنۍ ژبې یعني هندي او پنجابي ژبو تدریس او د هندو مذهب زده کړه عامه سوه.

دا لا څه، افغاني هندوانو د امان الله خان د وګړنیز خصلت په درک کولو سره یوه عریضه ترتیب کړه او هغه ئې شاه امان الله ته وړاندې کړه چې څو مهمې غوښتنې ئې ترې کړې وې. وروسته امان الله خان د یو فرمان په توګه د هغوی ټولې غوښتنې تایید کړې. په آثارو او منابعو کې د هندوانو دا غوښتنې جلا ذکر سوي دي او د امان الله خان ځوابونه (د یو فرمان په توګه) جلا ذکر سوي دي، خو زه به دا غوښتنې او ځوابونه سره توحید کړم تر څو ښه واضح او توضیح سي. د هندوانو مطالبې او د شاه ځوابونه دا دي:

۱ - څنګه چې ځیني کسان بعضي هندوان په زوره مسلمانان کوي، نو هیله ده چې په دې هکله امر وفرمایاست تر څو حکومتي مسئولین دقت او توجه وکړي.

ځواب: امر کېږي چې هیڅوک بل څوک نه سي مجبورولای چې مسلمان سي. که دا ثابته سوه چې د هغه په حق کې ناحقه شاهدي ادا سوې ده نو دغسې شاهد به پنځه سوه روپۍ جریمه او درې کاله به بندي کېږي.

۲ - په دیني چارو او معاملاتو مثلاً نکاح او میراث کې دې اجازه راکړل سي چې موږ د خپل مذهب (دهرم شاستر) یعني د خپلو دیني کتابونو د احکامو سره سم فیصلې وکړو.

ځواب: منظور ده.

۳ - هندو ښځې زیارتونو ته له ورتګه منع دي. هیله ده چې همایوني اعلیحضرت اجازه وکړي چې هغوی وروسته له دې خپلو زیارتونو ته ولاړې سي.

ځواب: اجازه ده، چې زړه ئې وي هلته تللای سي.

۴ - که زموږ عبادت ځایونه وران سي نو اجازه دې راباندې ولورول سي چې بیرته ئې د پخوا په شان ودان او جوړ کړو.

ځواب: اجازه ده، هر وخت چې ستاسې درمسالونه وران سي، د پخوا غوندې ئې آباد کړئ.

۵ - که زموږ د خلکو کومه غوا ناروغه سي، موږ د خپل مذهب پر اساس هغه نه وژنو بلکې پرېږدو ئې چې پخپله مړه سي. خو په کلیو کې ځیني خلک دغسې کار د خپلې کړنې مطابق غواړي او نه پرېږدي چې هغه پخپله

ضایع سي. نو هیله من یو چي دا کسان تنبیه سي تر څو هندوان په عذاب نه کړي.

ځواب: امر کېږي چي وروسته له دې څوک غرض په و نه کړي او هغه پرېږدي چي پخپله مړه سي. که چا په دې هکله زورزیاتی وکړ نو سل روپۍ جریمه به ترې اخیستل کېږي.

۶ – د لنګوټې او دریشي په هکله له دې مخکي بندیزونه موجود ول تر څو هندوان د مسلمانانو څخه تشخیص او وپېژندل سي. هیله ده چي دغسي بندیزونه معاف سي.

ځواب: سمه ده، هر ډول لنګوټه چي تړي او هر ډول دریشي چي اغوندی اختیار لري.

۷ – هیله من یو چي هندوانو ته دا اجازه ورکړه سي چي هر ځای وغواړي هلته مځکه رانیولای سي.

ځواب: صحیح ده، د افغانستان هر هندو تبعه چي هر ځای وغواړي مځکه رانیولای سي.

۸ – هیله من یو چي څومره محصولات چي د مسلمانانو څخه اخیستل کېږي، کټ مټ د هندوانو څخه هم هغومره واخیستل سي.

ځواب: د محصولاتو او نورو په هکله دي د مسلمانانو سره یو رنګه ترې واخیستل سي.

۹ – کله چي یوه ښځه مسلمانه سي نو مېړه ته یې هم دا تکلیف ورکول کېږي چي باید مسلمان سي. او که یو سړی مسلمان سي نو ماندینه ئې هم مجبوروي چي مسلمانه سي. هیله من یو چي دغسی کسان تنبیه سي تر څو داسي کار و نه کړي.

ځواب: سمه ده، که نر یا ښځه په خپله خوښه مسلمان سي باید په عیال سره هغه مجبور نه کړل سي.

۱۰ – کله چی یو هندو هلک چي پلار ئې ژوندی وي او پخپله خوښه مسلمان سي، نو هغه د خپل مال اختیار لري چي د ثبوت له مخي یې د ځان سره یوسي. هیله ده چي د هغه د پلار، مور او نورو مال د ده و نه بلل سي او نه هم ده ته ورکړه سي، دا ځکه چي حق نه لري.

ځواب: سمه ده، باید په دې باب پوره دقت وسي تر څو حق تلفي و نه سي او خپلوانو ته ئې ضرر و نه رسېږي.

۱۱ – ځیني هندوان چي مسلمانان کېږي په ناحقه سره د میراث دعوه کوي او د خپلو نورو ورونو څخه حق غواړي. هیله ده چي حکومتي لویان په دې اړه دقت وکړي او دغسي شخص باید اضافه طلبي او اضافګي و نه غواړي.

ځواب: که ئې پلار یا ورونه مړه سوي ول او وروسته یو له هغوی څخه مسلمان سي او د پلار مال ئې تقسیم سوی نه وي نو د شرعي ترکې د اصولو له مخي باید د هغه حصه واخیستل سي. او که د پلار د مړ کېدو څخه مخکي د هغه د زامنو څخه یو مسلمان سي او وروسته ئې پلار هم مسلمان سي او بیا مړ سي نو د میراث حق نه لري.

۱۲ – هر هندو که وغواړي چي له افغانستان څخه دباندي یا له بهره هیواد ته

تګ راتګ وکړي، هیله ده چې آزادانه اجازه ورکړه سي.

ځواب: درسته ده، د تګ راتګ د قواعدو سره سم ټوله آزادانه تللای او راتللای سي او د افغانستان په دننه کي دې دیوان نرنجن داس او نور هندو مشران د هغوی ضمانت وکړي او خبر دي ئې ولري.

۱۳ - کله چې د کوم هندو کور غله ووهي نو هیله ده چې عدلي محکمې د یو مسلمان په شان د دغسي هندو د قضیې هم تحقیق وکړي.

ځواب: امر کېږي چي په حکومتي ځانګو کي دي د هندوانو حقوق هم د مسلمانانو د حقوقو غوندي مراعات سي نه یوازي د غلا سوو مالونو په ارتباط، بلکي په ټولو دعوو کي باید د دوی حقوق په عدالت او مساوات سره تحقیق کړه سي.

۱۴ - څنګه چې د کابل د دارالسلطنه لوی مکتبونه د ټولو هندوانو له پاره د دولت له خوا ټاکل سوي دي داسي چې زموږ څخه هر څوک باید خپل اولادونه هلته دیني او نور علوم حاصل کړي. دا هم ستاسو مهرباني ده. خو هیله کوو چې حتمي دي نه وي او هر کله که څوک خپل پلرنی کسب کول غواړي نو اختیار دي ولري.

ځواب: د دنیا هیڅ پرمختګ بې له علم څخه نه کېږي. زه پوهیږم چې تاسي به څو کاله وروسته پښېمانه سی. خو دا چې تاسي همداسي غواړئ نو ستاسو د خوښي څخه پر ته به په عسکري او ملکي مکتبونو کي شمولیت حتمي نه وي. همدا راز، امر کېږي چي ځیني وختونه د شخړي او جنجال او نورو په ترځ کي چي د کومو جاهلو له خوا هندوانو ته د دوی د مذهب له امله بد او ناوړه ښکنځل کېږي نو عدلي ځانګي او پولیس چي څنګه د مسلمانانو په حصه کي اړونده دقت او ممانعت کوي د هندوانو په هکله هم باید عین عمل اجرا کړي او د ملامت څخه ټاکلې جریمه واخلي. (۱: جریدهٔ امان افغان؛ لومړی کال، اتمه ګڼه، د ۱۲۹۹ لمریز کال د ثور دېرشمه. ۲: دورهٔ امانی؛ نگرشی به اوضاع اجتماعی، فرهنگی و سیاسی: ۲۳-۲۷ مخونه).

امان الله خان دا فرمان د ۱۲۹۹ لمریز کال د حمل د میاشتي پر دوولسمه صادر کړ. د هندوانو د پورتنیو غوښتنو او د امان الله خان د دې پېرزوینو څخه عملاً ثابتېږي چي اماني دولت د افغاني هندوانو او سیکانو سره څومره مینه او خواخوږي لرله.

دا لا څه، امان الله خان وروسته په خپلو حقوقي او اداري اصلاحاتو کي هندوانو ته هم لوی سهم ورکړ. د افغانستان لومړنی اساسي قانون چي د ۱۹۲۳ په اکتوبر کي خپور او نافذ سو، دافغانستان ټولو اتباعو ته (که مسلمان وو یا غیر مسلمان) برابر حقوق ورکړل. د دې قانون په دوهمه ماده کي داسي ویل کېدل: «د افغانستان دین اسلام دئ. د نورو دینونو وګړي لکه هندوان او یهودیان چي په افغانستان کي اوسېږي، هم د ساتني له حقه برخمن دي». (هندیان په جنوبي آسیا کي: ۱۴۳ مخ).

دا تر لمر سپینه ده چي امان الله خان مکتب او تعلیم ته ډېر اهمیت ورکاوه. روایت

دئ چي کله هغه کندهار ته په سفر تللی وو، نو تر هر څه اول ئې د مکتب څخه ليدنه وکړه تر څو معارف له نږدې وارزوي. هلته ئې وليدل چي څو هلکان د ښوونځي په غولي (انګړ) کي لوبې کوي خو د مکتب نور ټول شاګردان په ټولګيو کي دي. حيران سو او پوښتنه ئې وکړه چي دا ولې؟ د مکتب مدير عرض وکړ چي دا هلکان هندوان دي. څنګه چي اوس د مسلمانانو د دينيات ساعت دئ نو هغوی د صنف څخه راوتلي دي. پاچا ورته وويل: ما امر کړی دئ چي په هغه ساعت کي چي مسلمانان دينيات وايي، نو هندو شاګردان بايد خپل دينيات ووايي (مجلهٔ فردا، ۲۹ ګنه، پنځم مخ، ۲۰۰۴).

څنګه چي پورته د ديوان نرنجن داس ذکر څو واره وسو، نو بده به نه وي چي په دې ارتباط د هغه مهال د تاريخ يوه بله پاڼه هم واړوو: ديوان نرنجنداس چي ډېر زړه ور او مدبر هندو وو، زوی ئې نه درلود بلکي دوې لوڼي ئې لرلې چي يوه «رادها» او بله «زارا» نومېدل. رادها ډېره ښايسته وه. د کابل خلکو له نازه «رادو» بلله چي وروسته په «رادو جانه» سره مشهوره سوه . هغې د کوچنيوالي څخه د هلک کالي اغوستل او د خپل پلار سره به اوږه پر اوږه په رسمي او غير رسمي غونډو، محافلو او مېلمستياوو کي راڅرګندېدله او داسي ئې ښودله لکه د پلار زوی چي وي. رادوجانه چي ډېره ښکلې پېغله وه، د هر چا ډېره خوښېدله او هر چا ئې ډېره ستاينه کول. د کابل ډېرو ځوانانو زړونه پر بايللي ول. څنګه چي هغې تل د خپل پلار سره سلطنتي دربار او غونډو ته تګ راتګ درلود، نو مَينانو ئې دا جرئت نه سو کولای چي هغې ته د خپل عشق اظهار وکړي. نو هغوی به مجبوره ول چي د خپلو زړونو فرياد په دې شعر سره پر ژبو راوړي او د هغې پر پلار ږغ وکړي چي دا د ګل غوندي نازکه او ښکلې پېغله خو تر مړيني وروسته قطعاً د سوځولو وړ نه ده، يعني:

او دخـــتر ديـوان بی بی رادو جـان
لاله را قسم دادم که رادو را نسوزان

لاله يعني (لالا) چي دا کلمه زياتره د هندوانو له پاره کارېدله. دغه سندره وروسته د ډاکټر صادق فطرت (ناشناس) په خواږه آواز کي وويل سوه چي ډېره مشهوره ده.

د هغه مهال هندو ځوانانو هم دا زړه نه سو کولای چي ديوان صاحب ته د هغې له پاره مرکه وکړي. دا ځکه چي رادو جانه په اصطلاح «سردارخېله» وه. هغې د دربار د ښځمنو او پېغلو سره ډېره راسه درسه لرله او پر ټولو ډېره ګرانه وه.

خو کله چي امير امان الله خان د سقاو د بغاوت او شرارت سره مخامخ سو او مجبوراً ايټاليا ته ولاړ، نو د ديوان صاحب او رادو جاني ژوند هم د خطر سره مخامخ سو او بالاجبار هندوستان ته وخوځېدل. رادو جانه په سپين سرتوب کي يو ځل افغانستان ته راغله او تر ړو مودې تيرولو وروسته د تل له پاره بيرته هند ته ولاړه. هغې هلته هم د ژوند تر پايه واده و نه کړ او همداسي مړه سوه چي د کابلي ځوانانو هيلی او هوسونه هم ورسره مړه سول. (پورتنی قصه مي پنځه دېرش کاله مخکي د خپلو مشرانو څخه اورېدلې وه).

کله چې امیر امان الله خان د تل له پاره د افغانستان څخه وداع کوله نو په کندهار کې ګڼ شمیر قومي مشرانو لوی لښکر تهیه کړ او بیر ته ئې د سقاو په مقابل کې پر کابل د یرغل اراده وکړه او شاه ته ئې هم ډاډ ورکړ خو شاه د ملت د وینو تویېدل نه غوښته. په منزل باغ کې په دې ارتباط ډېره ستره غونډه جوړه سوه. ویل کېږي چې د کندهار یو شمېر هندوان هم په دې غونډه کې حاضر ول او د دې ملي لښکر سره ئې د خپل یو ځای والي او د هیواد د دفاع ډاډ ورکړ، خو امان الله خان جنګ نه غوښت (بحران و نجات: ۱۷۹ مخ).

په هر صورت، د ۱۹۳۱ کال اساسي قانون چې د اعلیحضرت نادر شاه له خوا نافذ سو، هم افغاني هندوانو ته د پام وړ امتیازات ورکړل. مثلاً د دې قانون لومړنۍ مادې ویل چې د نورو ادیانو پیروان لکه هندوان یا یهودیان چې په افغانستان کې اوسېږي خوندي دي (هندیان په جنوبي آسیا کې: ۱۴۳ مخ).

د ۱۹۶۴ کال اساسي قانون د افغانستان ټولو مذهبي اقلیتونو، منجمله هندوانو او سیکانو ته پراخي دیموکراتیکي، مذهبي او مدني آزادۍ ورکړې. د دې قانون لومړنۍ مادې داسي ویل: «غیر مسلمان اتباع باید آزاد وي چې خپلې دیني چارې په هغو حدودو کې تر سره کړي چې د عامه درنښت او آرامۍ د قوانینو له خوا ټاکل سوي وي» (د افغانستان اساسي قانون: ۱۹۶۴، دریم مخ). په ظاهرشاهي دوره کې افغاني هندوان (او سیکان) د حکومتي ځانګو په بېلابېلو برخو کې ډېر جذب سول او آن په سیاست کې هم برخمن سول. په خلق ګوند کې هم ډېرو هندوانو او سیکانو غړیتوب درلود. د ۱۹۶۸ کال په پارلماني انتخاباتو یعني په دوولسمه دوره کې «جې سینګ» د کابل د استاځي په حیث ولسي جرګې ته بریالی سو. هغه مهال د کابل نفوس یو ملیون وو، او پنځه پارلماني څوکۍ ئې لرلې چې د دغو پنځو څخه یوه جې سینګ وګټله. جالبه لا دا چې هغه وخت د افغانستان په وګړو کې هندوانو او سیکانو څه کم نیمه سلنه نفوس درلود (هماغه).

د ظاهر شاه د واکمنۍ په اوږدو کې او د داود خان د جمهوریت پر مهال د افغاني هندوانو سره د هیواد د نورو اتباعو غوندي برابر چلن کېدی او د هر ډول آسانتیاوو څخه برخمن ول. هغوی په تعلیمي او تجارتي برخو کې ډېر پرمختګ وکړ. هغوی زیاتره په دولتي بانکونو او نورو مالي او تجارتي بانکونو کې ګومارل سوي ول. خو په حکومتي ادارو کې د هغوی شتون لږ وو. دا له دې امله نه چې هغوی ته فرصت نه ورکول کېدی بلکې ځکه چې هغوی پخپله آزاد کاروبار غوښت او له دې درکه ئې زیات عاید تر لاسه کاوه (هندیان په جنوبي آسیا کې: ۱۴۴ مخ).

دا لا څه، هندوانو ته دا اجازه او حق ورکول سوی وو چې خپل ځاني او شخصي مکتبونه خلاص کړي حال دا چې په افغانستان کې هیڅ ډلي او هیچا د شخصي ښوونځیو د خلاصولو او لرلو اجازه نه درلوده، خو یوازي هندوان له دې امتیازه برخمن ول (هماغه).

د افغانستان هر تبعه دا وجيبه او وظيفه لرله چې دوه کاله به ئې عسکري خدمت کاوه . هندوان او سيکان هم مستثنا نه ول، خو هغوی ته دا امتياز ورکول سوی وو چې په خپل ولايت کې به ئې عسکري کول او غرمه به رخصت کېدل او بيرته به خپلو کورونو ته تلل. هغوی مجبور نه ول چې د خپلو نورو پوځيانو سره يو ځای ډوډۍ وخوري (هماغه).

افغاني هندوانو او سيکانو د هيواد د سوداګرۍ او راکړې ورکړې ستره برخه په واک کې لرله. د هغوی د تجارت عمده لوری هندوستان وو. هغوی به تازه او وچې مېوې او نور اقلام هلته صادرول او په عوض کې به ئې هندي توليدات واردول چې له دې درکه ئې ډېره ګټه کوله (هماغه: ۱۴۵ مخ). له دې پرته هغوی په لويو ښارونو کې د بزازۍ، زرګرۍ او نورو حرفو دکانونه لرل چې د عامه توجه، باور او ډاډ وړ ول. هغوی (خصوصاً په کندهار کې) د ځمکو او باغونو اجارې يا مالکيت هم درلود. په لويو ښارونو خصوصاً کابل او کندهار کې چې به ځوانان عسکر کېدل نو خپلې پيسې به ئې هندوانو ته د امانت په توګه ايښوولې او بيا به ئې لږ لږ ځنې اخيستې چې دا پر هغوی د باور يو ښه ثبوت وو (هماغه).

د تورو پيسو (حوالې او صرافۍ) کاروبار تقريباً ټوله د هندوانو په واک کې وو چې دا کار د مسلمانانو له پاره منع وو. تر ۱۹۴۸ پوري دا کار يهوديانو کاوه خو د اسراييلي دولت تر استقرار وروسته هغوی له افغانستان څخه ووتل او دا کاروبار هندوانو ته ورسېد (هماغه: ۱۴۶ مخ).

افغاني هندوانو د يوناني داروګانو او طبيعي بوټو په واسطه د علاج کاروبار هم کاوه. هغوی په لويو ښارونو کې د دې کار له پاره خپل دکانونه لرل او هم ئې په کورونو کې دغه طبابت کاوه. هغوی دا مسلک په هند کې زده کاوه او وروسته به ئې خپلو اولادو ته پسې ورزده کاوه. هغوی به کله کله کليوالي او ليرې پرتو سيمو ته هم ورتلل او هلته به ئې د خلکو علاج کاوه. په کندهار کې چندرا طبيب او وروسته بيربل طبيب ډېر مشهور ول (هماغه).

د ظاهرشاه د سلطنت او داود خان د جمهوريت پر مهال د افغاني هندوانو زياته برخه په کندهار، ننګرهار ، غزني، خوست او شمال کې اوسېدل چې د هغوی نيکه ګان څو پېړۍ مخکې افغانستان ته راکوچېدلي ول. د هغوی مورنۍ ژبه سندي او ملتاني (يعني د پنجابي يوه څانګه) ده خو لږ شمېر په هندي هم رغېږي (هماغه). سيکان تر هغوی وروسته افغانستان ته راغلي دي. د بي بي سي خبريال «سنجوی مجوم در» په ۲۰۰۳ کې وليکل چې سيکان د لومړي ځل له پاره برتانويانو په نونسمه پېړۍ کې افغانستان ته راوستل (هندويت په افغانستان کې ويب پاڼه).

پخوا افغاني هندوان هم پر څو قومي برخو ويشل کېدل لکه برَهمن، کشتري او ويشري. خو وروسته نوی نسل د دې ډول امتيازي طبقه بندۍ څخه پردي سول. هغوی

ځانونه د خپل پخواني ټاټوبي له رویه پېژني لکه ملتاني، پنجابي او شکارپوري هندوان. ملتاني هندوان په کندهاري هندوانو سره مشهور دي چې تر نورو مخکې دلته میشته سوي دي (هماغه: ۱۴۷ مخ).

اوس به په بېلابېلو تاریخي دورو کې د ځینو مشهورو هندو مخورو نومونه ذکر کړم: ویل کېږي چې نندرالا غزنوي د سلطان محمود غزنوي د دربار یو هندو شاعر وو چې په فارسي ئې شعرونه ویل؛ د شاه شجاع د مالیې وزیر لالا جیت مل وو؛ دیوان نندلال بهسین د شاه امان الله د دفتر مدیر وو؛ حُکم چند کپور د بانکونو مؤسس او د افغان ملي بانک د لومړنیو مؤسسینو څخه ګنل کېږي چې بیا د بانک د قانون او اقتصاد او پیسو د نوټونو په طرح کولو کې مهم شخص وو؛ پوهاند بال مکن داس په افغانستان کې د طب د پوهنځي له لومړنیو استادانو څخه وو؛ پُرانات د راډیو افغانستان د تکړه او خوږ ژبو سندرغاړو څخه وو؛ مهرچند ورما تر ۱۹۸۴ پوري د افغانستان د مالیې د وزارت مرستیال او بیا د وزیرانو د شورا اقتصادي سلاکار وو؛ سونارام تلوار د افغانستان د لومړنیو مستند جوړونکو څخه وو؛ چت رام ساتهي د هیواد تکړه تبله وهونکی او د اماتور آرکسټرا مشهور غړی وو؛ سنتوک سینګ د افغان اردو د لومړنیو ډګروالانو څخه وو؛ رجني پران د راډیو افغانستان د خورا تکړه نطاقانو څخه وو چې وروسته ئې سندري هم ویلې؛ سورج پرکاش تاچند د کابل پوهنتون د انجینیرۍ پوهنځي تکړه استاد وو چې په واشنګټن پوهنتون کي ئې عالي تحصیلات کړي ول؛ ویشوامیترا د کندهار په بین المللی هوايي ډګر کي د تفتیش او کنټرول آمر او د کلیفورنیا له پوهنتون څخه د عالي تحصیلاتو لرونکی وو؛ کشن دیوان یو ټولنیز او ملي شخصیت او قومي مشر وو (د افغانستان مشاهیر : ۸۰، ۸۴، ۱۸۰، ۲۰۷، ۲۱۴، ۲۸۵ مخونه)؛ پوهاند دکتور موهن لا مهرا د کابل پوهنتون د ساینس پوهنځي لایق استاد، شام لال بتهیجاچي یو کال مخکې په کاناډا کي د افغانستان سفیر وو (مې ۲۰۱۴- مې ۲۰۱۵)؛ د اوسني پارلمان سیکه غړې «انارکلي هنریار» چي یوه هیوادپاله مېرمن ده او ډېر نور. د لغمان ولایت هم لږ هندوان لري مګر پخوا دلته زیات شمېر هندوان آباد ول. ویل کېږي چي د هندي سینما د مشهور اېکټر «وینود کهِنه» کورنۍ له همدې ولایت څخه هند ته کوچېدلې ده (افغان هندو ټولنه، فېسبوک).

افغاني هندوانو د هیواد په ځینو برخو کي د ځايي افغانانو کلتور خپل کړی دئ. مثلاً په لوګر او خوست کي هغوی د ټوپکونو سره ګرځي، جنګیالي او زړه ور دي، مېلمه پاله او د بشپړ باور وړ دي، ښځي ئې شنه خالونه وهي، لوی پوړني پر سر کوي، په پښتو ژبه خبري کوي (یعني پښتو ئې مورنۍ ژبه ده) او د کلیوالي افغانانو غوندي ژوند کوي (هندیان په جنوبي آسیا کي: ۱۴۷ مخ). په دې ارتباط به خپله یوه خاطره ولیکم چي د افغاني هندوانو د افغانیت، شهامت او غیرت تومنه لري. زه (لیکوال) د ۱۹۸۸ څخه د ۱۹۹۹ تر پایه د هند په ډیلي کي اوسېدلی یم. هلته د

ملګرو ملتونو د کډوالو د څانګې له خوا د افغان کډوالو له پاره څو مرکزونه جوړ سوي ول. په هر مرکز کې افغان ترجمانان په کار بوخت ول. یوه ورځ زه د «ویکاس پوري» مرکز ته ورغلم او هلته مې ولیده چې د څو تنو افغاني ښځو او یوې ترجماني پېغلې تر منځ سخت لفظي جنګ روان دئ. دغو ښځو غټ پوړني پر سر کړي ول چې تر پښو پوري ئې رسېدل، پر تندي او مخ ئې شنه خالونه لرل، په ونه دنګې، په څېره ښایسته او د غرنیو پښتنو په شان هیبت او حیثیت ئې درلود. ټوله په پښتو ژبه ږغېدې. ماشومان هم ورسره ول یا ئې په غېږ کې ول او د هغوی سره ئې هم په پښتو خبري کولې. د دوی غیرت او پښتونوالي ډېر خوند راکړ، ورغلم او ورځخه ومې پوښتل چې خویندو، څه خبره ده؟ هغوی چې زما پښتو واورېدله په ډېره پښتني حیا سره ئې راته وویل چې وروره، موږ پښتانه یو، نه مو فارسي زده ده او نه هندي. خو دلته دغه بدمرغه نجلۍ په پښتو هیڅ نه پوهېږي او زموږ مشکل دغو هندوستاني ښځو ته نه سي ترجمه کولای. دا معاش دي د دې زهر سي چې په درواغو ئې اخلي او هغوی ته وایي چې زما پښتو او فارسي دواړه زده دي. وطن دغو خاینانو خراب کړ... خیر، ما مداخله وکړه او وروسته راته معلومه سوه چې ترجمانه یوه هزاره پېغله ده چې یو حرف پښتو ئې هم زده نه ده. نو ما د دغو ښځو ترجماني وکړه او ډېره جالبه لا دا چې تر همدې لحظې خبر نه وم چې هغوی زما د وطن هندوانیاني دي. دوی د خوست معززی هندو ښځې وې. ما ئې ترجماني وکړه او د اړونده مرکز ماموراني (چې د هندوستان هندوانیاني وې) حیراني سوې چې دا څنګه هندوانیاني دي چې نه ئې هندي او نه ئې فارسي ژبې زده دي. هغوی وروسته خورا خوشحالي سوې او زیاتي دعاوې ئې راته وکړې. هو، دا زموږ د وطن اصیلي لوڼې او د ویاړ نمونې وې چې نن په هند کې د حسرت او مسافرت ژوند تېروي.

په هر صورت، هغه هندوان چې په کلیو او کوچنیو ښارونو کې اوسېږي د ځایي خانانو تر حمایت لاندي کاروبار او دکانداري کوي خو د ښارونو ځینو شتمنو هندوانو په هند کې خپلوۍ کړي، هلته ئې جایدادونه او بنګلې اخیستي دي او هلته خپلي تجارتي نمایندګۍ لري (هماغه).

کله چې په ۱۹۴۷ کې هند وویشل سو او د پاکستان په نوم یو نوی هیواد وزوکېد، نو د خیبر پښتونخوا او بلوچستان ډېر هندوان له مجبوریته افغانستان ته راغلل او په کلیو کې ئې استوګنه غوره کړه. هغوی ټولو دلته ځانونه ژغورنده او محفوظ وبلل. وروسته د هغوی زیاته برخه هندوستان ته ولاړل (هماغه).

د افغاني هندوانو د نفوس په باره کې بېلابېلو شاهدانو او محققانو بېل بېل اعداد او ارقام بیان کړي دي. والټر بیلیو چې په ۱۸۵۰ کلونو کې په افغانستان کې ګرځېدی، د افغانستان د هندوانو شمېر درې لکه (۳۰۰۰۰۰) کسان ښودلی دئ. خو د برتانیې له خوا د هند د نیولو او د بحري لارو تر کشفېدو وروسته د کندهار، شکارپور او نورو افغاني سیمو د هندوانو تعداد په تدریج سره لږ

سو. زیاتره هندوان د سِند نورو برخو او مهاراشترا (بمبی، پونه) ته وخوځېدل. په ۱۹۷۰ لسیزه کي د افغاني هندوانو نفوس ډیرش زرو ته رسېدی (هماغه: ۱۴۸ مخ). خو اوس څه باندي یو زر کسان پاته دي (هندویت په افغانستان کي ویب پاڼه).

په هر صورت، له پورتنی څېړنی څخه په مجموع کي دا نتیجه اخیستل کېږي چي افغاني هندوان (او سیکان) زموږ د هیواد اصیل بچیان دي چي پېړی پېړی دلته په سوله، خوښی او نېکمرغی سره اوسېدلي دي. هغوی د یو خواریکښ، وفاداره، هیواد پاله او بې آزاره اقلیت په توګه اولس او هیواد ته خدمت کړی دئ. هغوی د تاریخ په بیلابیلو پړاوونو کي د ملت او دولت دواړو د بشپړ باور وړ ګرځېدلي دي. هغوی د نورو افغانانو غوندي د وطن په ښېرازی او سوکالی کي قربانی ورکړي دي. هغوی هم د تېرو درونیمو لسیزو راهیسي د ټول افغان اولس غوندي مصیبتونه او غمونه ګاللي دي. هغوی د یو فعال او وفادار اقلیت په توګه پر افغان اولس باندي د پالني او ساتني اخلاقي حق لري چي موږ ټول ئې باید تر خپله وسه تأمین او تضمین کړو، والسلام (ن. صمد).

**د دې برخي مأخذونه:**


۱. هندیان په جنوبي آسیا کي [د افغانستان اړونده برخه]؛ عبدالعلی ارغنداوی، مصحح: آی. جې. بهادر سینګهـ، نوی ډیلي، ۱۹۸۴.
۲. نگاهی مختصر به تاریخ معاصر افغانستان؛ کاندید اکادیمسین محمد ابراهیم عطایی؛ مترجم: دکتور جمیل الرحمن کامگار، چاپ اول، بنگاه نشراتی میوند، پشاور، ۱۳۸۳ شمسی.
۳. افغانستان در پنج قرن اخیر؛ میر محمد صدیق فرهنگ، چاپ اول، مشهد، ۱۳۷۱ شمسی.
۴. افغانستان در مسیر تاریخ: میر غلام محمد غبار، دولتی مطبعه، کابل، ۱۳۴۶ (۱۹۶۷).
۵. جریدهٔ امان افغان؛ لومړی کال، اتمه ګڼه، د ۱۲۹۹ لمریز کال د ثور دېرشمه.
٦. دورهٔ امانی: نگرشی به اوضاع اجتماعی، فرهنگی و سیاسی؛ اکادمیسین دکتور اسدالله حبیب، ۱۳۶۸، کابل.
۷. مجلهٔ فردا، ۲۹ ګڼه، ۲۰۰۴، سویډن.
۸. بحران و نجات: غلام محی الدین انیس، بنگاه نشراتی میوند، ۱۳۷۸، پشاور.
۹. د افغانستان اساسی قانون؛ ۱۹۶۴، په انګرېزي ژبه، کابل.
۱۰. د افغانستان مشاهیر؛ لوډویک ډبلیو. اډامیک. ګرېز، اطریش، ۱۹۷۵.
۱۱. افغان هندو ټولنه. فېسبوک پاڼه.
۱۲. هندویت په افغانستان کي ویب پاڼه.

(۸)

# د کابل پېغله

(په زړه پوري اسلامي تاريخي ناول)

ليکوال: اسلامي مؤرخ: صادق حسين صديقي
ژباړن: ډاکټر نثار احمد صمد/کاناډا

## ټولنيز سمون

ځنګه چي اکثره جګړې، فتنې او دښمنۍ د نکاح او واده د جنجالونو څخه رامنځته کېږي او په شرعي محکمو کي زياتره دعوې د هغو مظلومو ښځو له خوا اقامه کېږي چي مېړونه ئې ظلم او زورزياتی پر کوی. نو ځکه د ظلم او شخړو د ختمولو په خاطر او هم د ښځو د هغو حقوقو د مساوات ساتلو په غرض چي د شريعت مطابق او د حنفی مذهب سره موافق وي، موږ لانديني قواعد نافذوو. په دغو کي ځيني هغه رواجونه هم بدل يا منع کېږي چي له امله ئې افغان ملت د غربت په بلا کي راګير سوی دئ.

۱ – هغه کسان چي له يوې څخه اضافه مانديني لري، که د شريعت سره سم د هغوی تر منځ مساوات مراعات نه کړي نو سزا به ورکړه سي.

۲ – که د حرص، طمعي يا ناوړه هدف په خاطر د نابالغه نجونو او هلکانو نکاح وتړل سي نو دغسي کسانو ته به هم سزا ورکړه سي.

۳ – هغه مېړه ته به هم سزا ورکول کېږي چي پر خپلو ماندينو باندي ظلم او تېری کوي.

۴ – د کوزدې مراسم بالکل بند دي.

۵ – د مهمندو رواج يو بدعت دئ، نو هغه هم نور بند دئ.

۶ – د بلغا يعني هغه رواج نور بند دئ چي که د يو چا د بل سره د قتل پر اساس دښمني لوېدلې وي او په نتيجه کي د مقتول نږدې خپلوانو ته که هغه متأهل وي يا مجرد، خپله لور يا خور ورکوي.

۷ – کورنی ميراث (هغه چي د خپل ورور کونډه، که په عمر غټه وي يا کوچنۍ او د متوفي ورور د هغې سره په زوره نکاح تړي) نور بند دئ.

۸ – هیڅوک کونډه یا طلاقه سوې ښځه له نکاح څخه نه سي راګرځولای. که چا هغه راوګرځوله نو سزا به ور کول سي.
۹ – د اختر جوړې، د برات او نورو اړونده جوړې چي د ناوي کورنۍ ته ور کول کېږي نور پای ته رسېږي.
۱۰ – د هغو نابالغو واده نه فسح کېږي چي پلار یا نیکه ئې ورته کړی وي.
۱۱ – د برات (پنځلسي) په شپه به د ناوي کره د زوم والاوو ورتلل او هلته به په هغوی د ډوډۍ خوړلو مصارف نور نه کېږي او نه به د ډوډۍ خوړلو انتظام کېږي.
۱۲ – د نکاح خواږه (میتایي) له یو من څخه تر دوه منه پوري ټاکل کېږي. د دې څخه اضافه کوونکو ته به سزا ورکړه سي. په دغو خوړو کي نقل (نوقل) هم شامل دي.
۱۳ – تر دېرش روپیو زیات مَهَر بند دئ.
۱۴ – د نکاح ویلو فیس پنځه روپۍ دئ، تر دې زیات بند دئ.
۱۵ – شیر بها (د شیدو ور کولو قیمت) او طویانه (د شیر بها غوندئ دئ چي د ناوي خوا ئې د زوم والاوو څخه اخلي) نور باید وا نه خیستل سي.
۱۶ – د ناوي لباس په لاندي ډول ټاکل کېږي:
الف: شتمن کسان څلور جوړې ورېښمین کالي، درې جوړې ورین او ګنډلي کالي؛
ب: متوسط الحاله خلک درې جوړې ورېښمین او درې جوړې ورین او ګنډلي کالي؛
ج: عادي خلک صرف ورین او ګنډلي درې جوړې.
که څوک له دې نوي ټولنیز قانون څخه سرغړونه وکړي نو هغوی به د سزا سره مخامخ سي.
دا د امیر امان الله خان لومړنی ګام وو چي له مخي ئې افغان ملت د ټولنیزي ودي پر خوا را اوچت کړ. د قانون دا مسوده د اعلانو او اخبارو په ذریعه په ټول هیواد کي خپره سوه. کوم خلک چي د هیواد او اولس د نېکمرغۍ او ښېګڼي غوښتونکي ول نو دې قانون ته ئې هرکلی ووایه. خو کوم کسان چي زوړپاله او ملي خاینان ول نو دا کار ئې په دین کي مداخله وبلله او په پټه ئې د دې قانون پر ضد د ساده افغانانو راپارول پیل کړل.
د دې ټولنیز قانون پر خلاف د عمل کوونکو په رأس کي د شوربازار حضرت قرار درلود.
امیر امان الله خان او د هغه حکومت پوهېدی چي زوړ پاله او پس پاته افغانان به یو څو ورځي ناړې ووهي خو بیرته به آرام سي او دغه قانون به منظور کړي چي د هغوی د ټولنیز، سېماییز او معاشرتي ادابو د کمزوریو رفع کوونکی وو. د ده دا فکر تر یو حده صحیح وو. دا قانون په دین کي مداخله وه چي صرف د افغان ملت اصلاح ئې هدف وو. خو الله دي د افغاني پیرانو او جاهلو ملایانو سره ښه وکړي چي په نه سترګی کېدونکو هڅو سره ئې د ناپوهو ملایانو له خوا ښورښ او بغاوت راوپاراوه.

امیر امان الله خان خورا ډېر زړه سوانده او د خپل ملت یو ځان سپارلی بچی وو. هغه دې ښورښ ته ډېر اهمیت ور نه کړ، او ځو ورځي وروسته دا نارې سورې او فتنې هم پای ته ورسېدې. اوس امان الله خان خپل دوهم ګام اوچت کړ. هغه دا چې د لویو کمیسونو او پرتوګونو، لویو لویو قبا ګانو (هغه چپنې چې روحاني مشران ئې اغوندي) او خولۍ لرونکو بګړیو پر ځای ئې د پتلون، کرتۍ او شپو خولۍ پر استعمالولو ټینګار وکړ. د نجونو مکتبونه ئې خلاص کړل. بوغرې (برقع) ئې یو چټي شی وباله.

افغانانو چی د ټولنیز سمون دا قانون مداخلتِ فی الدین باله نور نو راوپارېدل او د دې ډول کارونو له امله وپرسېدل. بس یو دم په ټول افغانستان کې د بلوا اور بل سو. عوامو امان الله خان ملحد، زندیق، کافر او عیسوی وباله.

نور نو پیرانو او ملایانو ته خدای ورکړه او هغوی په ښکاره د دغو ټولو نوو قوانینو سخت غندل پیل کړل. د بغاوت او ښورښ اور وار په وار تازه کېدی. ټول قبایل د اعلیحضرت امیر امان الله خان او د هغه د حکومت پر خلاف راپورته سول.

په همدې وخت کې میرمن ثریا په اروپایي لباس کي لوڅ مخ په بازارونو، تفریحي ځایونو او نورو عامه ځایونو کي راښکاره کیدله او تلله راتلله. هغې ته په کتلو سره د سلطنتي چارواکو ښځو هم چادرۍ (برقع) لیري کړې او هغوی هم په نیم پټو لباسونو کي او لوڅو مخونو سره دوري هوري ګرځېدلې.

د ښځو دا بې سَتري او لوڅ مخي چي افغانانو ولیدل نو یو دم ولړزېدل او وخښمېدل. تر ټولو اول شینوارو ښورښ پیل کړ. دا قبیله د ډکې او جلال آباد تر منځ اوسېږي. هغوی یوه لویه غونډه ترتیب کړه او بیائې پر جلال آباد باندی یرغل وکړ.

هر افغان آزاد دئ او په خپلو کورونو کي توپکونه او توپنچې لري. په دې هیواد کي نه پر جنګي الاتو بندیز سته او نه ئې ځوک د لرلو لایسنس ته اړتیا لري. د هر چا سره دوه درې یا څلور توپکونه او خورا زیات کارتوسونه وي.

هغوی دا جنګي وسایل راواخیستل او مخ پر جلال آباد وخوځېدل. په جلال آباد کي لږ پوځ موجود وو. هغوی د دومره ډېرو یاغیانو سره مقابله نه سوه کولای. بل دا چي دا ښورښ نابېره پیل سو. نو ځکه حکومت ژر او بېړنی اقدام و نه سو کړای. د جلال آباد پوځیان په خپله چونۍ کي محاصره سول. یاغیانو د دې پوځي کلا دېوالو ته ځانونه راورسول او د ماینونو په ذریعه ئې د دېوال د الوزولو کوښښ وکړ. خو حکومتي پوځیانو پر هغوی باندې د مرمیو باران جوړ کړ چې له امله ئې هغوی ځانونه ټینګ نه کړای سول او وتښتېدل. د هغوی اته سوه جنګیالي په دې جګړه کي ووژل سول.

یاغیان د خپلو مړو او تلفاتو په لیدو سره سخت وخښمېدل. هغوی هره هغه حکومتي ودانۍ سوځول چې په مخه ورتله، خو نه ئې پوځي کلا ته لار پیدا کړه او نه ئې د پوځ مقابله وکړای سوه. نو ځکه پر شا وشړل سول او د جلال آباد په شاوخوا کي تیت او پرک سول.

کله چي کابل ته د دې ښورښ خبر ورسېد نو امیر امان الله خان فوراً د سردار یاور خان په قومانده یو څلور زره کسیز پوځ د یاغیانو د ځپلو له پاره ولېږی. خو دا شخص د لوژستیک افسر وو او په سیاست او جگړه ییزو تخنیکونو هیڅ نه پوهېدی. هغه په «ممله» کي واړول چي د جلال آباد څخه د کابل خوا ته په دېرش میله واټن کي موقعیت لري.

مملة په یو پراخ دښت کي واقع ده خو د څلورو خواوو څخه غرونو احاطه کړې ده. د سردار یاور خان افسرانو مشوره ورکړه چي موږ باید په دغو غرونو کي خپل توپونه ځای پر ځای کړو او سنگرونه ونیسو. خو هغه دا مشوره هیڅ په باک را نه وړه. یوه شپه یاغیانو پر هغوی شبخون حمله وکړه. حکومتي پوځیان وارخطا سول او ټولو خپلي وسلې وغورځولې. یاغیانو هم د هغوی ټوله توپکونه، کارتوسونه، توپونه او مهمات واخیستل او پخپله سردار یاور خان ئې هم ونیوی.

کله چي د سردار یاور خان د نیولو خبر سبا کابل ته ورسېد نو عوام ټول پرېشانه او ناآرامه سول. ځکه، د شینوارو ښورښ هغوی د یو څو کسانو دسیسه او فتنه گڼلې وه او چنداني اهمیت ئې نه ورکاوه. خو کله چي سردار یاور خان ونیول سو، د هغه څلور زره پوځیان له بیري وتښتېدل، شینوارو ټولي وسلې او مهمات لوټ کړل، نو حکومت هم متوجه سو.

غازی امان الله خان علي احمد خان راوباله او د یو غټ پوځ سره ئې جلال اباد ته ولېږی. په کومه ورځ چي علي احمد خان هلته ولېږل سو په هماغه ورځ امان الله خان ارشد خپل حضور ته وباله.

امان الله خان یو څېره پېژندونکی، زړه سوانده او د لیري لید څښتن وو. هغه پوهېدی چي ارشد د ده خیر غوښتونکی، وفادار او سر ښندونکی افسر دئ. پر ده باندي ارشد ډېر گران وو. ده ارشد د مازیگر قضا او د ماښام تر اذان یو څه مخکي مهال خپل حضور ته وباله.

ارشد هم د امیر امان الله خان حضور ته راورسېد. اعلیحضرت دا مهال د ماڼۍ په دننه باغچه کي د صنوبر تر وني لاندی پر یوه چوکۍ باندي ناست وو. د ده تر څنگ ملکه ثریا په یو خاص لباس کي پر یوه بله چوکۍ باندي ناسته وه. څو خادماني چي کمیسونه او پرتوگونه ئې اغوستي ول او له پاسه ئې جاکټونه اغوستي ول او پر اوږو ئې ورېښمین پوړني اچولي ول، لاس پر نامه ولاړي وې. دوی ټولي ښایسته او ځواني ښځي وې. بلې خوا ته څو سپین مخي پېغلي ولاړي وې چي اروپایي طرز لباسونه ئې اغوستي ول.

ملکه ثریا داسي لباس اغوستی وو چي لستوني ئې لنډ، بازوگان ئې ښکاره او د صراحي غوندي نرۍ غاړه او سپین ځکر ئې یو څه ښکاره وو.

ارشد د امیر امان الله خان په حضور مشرف سو. ده په آسیایي طریقه سره دواړه لاسونه پر ټټر نیولي ول او یو څه کوږ سو او سلام ئې وکړ. امان الله خان د ده سلام بیا کړ او تر څنگ ئې یوې چوکۍ ته په اشاره سره د کښېناستو ورته وویل. ارشد هم په ډېر ادب سره پر چوکۍ کښېناست.

مخکي مو وويل چي ارشد هم ډېر ښايسته وو، الله هغه ته د نرينه ښکلاوو زياته برخه عطا کړې وه. د ده څېره ډېره جذابه او مينه ناکه وه. بدن ئې نسبتاً غټ او تېز ئې پراخ وو. د ټولو خادمانو، پرستارانو او پخپله د ملکې نظر ئې ځانته واړاوه.

ارشد له شرم او حيا څخه په ډک حالت کي سر کښته نيولی او پټه خوله ناست وو. تر څو دقيقو وروسته امان الله خان داسي ورته وويل: «ارشده، ته د شوربازار حضرت ته ورغلی وې؟»

ارشد په داسي حال کي چي سر ئې کښته اچولی وو، ځواب ورکړ چي هوکې، ورغلی وم.

امان الله خان يو څه د ده په سوچونو او خيالونو وپوهېد.

ارشد: هغه د حکومت څخه خورا ډېر ناراضه دئ.

امان الله خان لږ موسکا وکړه او ويې پوښتل چي له حکومت څخه که زما څخه؟

ارشد: له حکومت څخه مطلب همايوني اعليحضرت دئ.

امان الله خان: هغه اوس څه اراده او خيال لري؟

ارشد: هغه غواړي چي په ټول هيواد کي عام ښورښ او بغاوت وسي.

امان الله خان: آخير د دې هر څه منشا او ريښه چيري ده؟

ارشد: هغه دا ټوله اصلاحات چي اعليحضرت راپيل کړي دي، بيرته لغوه کول غواړي.

امان الله خان: دا د هيواد بد قسمتي ده چي پيرانو او ملايانو په سرکښو او جاهلو افغانانو کي د بلوا اور پو کړی دئ. دا خلک د فرسوده ټولنيز سيستم غوښتونکي او د نوي مدنيت څخه سخت کرکجن دي. زه نه غواړم چي زما د واک په بهير کي دي زما د ګران رعيت ويني وبهېږي. که خلک زما حکومت نه خوښوي نو کوم بل پاچا دي وټاکي.

ارشد: خدای دي داسي نه کوي. پيران، ملايان او مولويان خپل بې ځايه ضد او زوړپالني رانده کړي دي. په خدای قسم چي داسي خواخوږی او نېک هيواد، ملت او روڼ فکره، مدبر او داسي زړه ور پاچا په دې عصر کي بل نسته. دا وخت چي په هيواد کي کوم ښورښ راپارېدلی دئ، اصلي منبع ئې د شوربازار جناب حضرت دئ. که اعليحضرت هغه ونيسي نو دا ټوله بغاوت او اله ګوله به پای ته ورسېږي.

امان الله خان: ته رښتيا وايې. خو تا دا فکر او غور نه دئ کړی چي د شوربازار حضرت نن په هيواد کي ډېر عزت لري. د افغانستان په لوېشت لوېشت کي هغه مريدان لري. نو د هغه د نيولو معنی به دا وي لکه ټول هيواد ته چي د راپورته کېدو بلنه ورکوو.

ارشد: دا صحيح ده. خو د بلوا بندول د هغه په نيولو يا وژلو کي نغښتي دي.

امان الله خان: کېدای سي چي زه د هغه د نيولو او اعدامولو امر وکړم، ياغيان هم ځپلای سم، خو زما زړه نه غواړي چي د وينو ويالې وبهېږي، خپل رعيت ووژنم، ملايان او

پیران اعدام کړم. زه اصلاً په زور او جبر سره حکومت کول نه غواړم.

ارشد: لاکن اعلیحضرته! د کوم بغاوت اور چې د شوربازار حضرت لګولی دئ چې اوس ئې یوه شعله د جلال آباد په شاوخوا کې بل سوې هم ده، نو هغه بې له یو څه وینو تویولو نه مړ کېږي.

امان الله خان: خو زه د خپل واک پر مهال آن د یو څاڅکي ویني تویېدو غوښتونکی نه یم. ما غوښته چې تا علی احمد جان ته ولېږم دا ځکه چې زه د هغه څخه د بغاوت اندېښنه لرم چې هغه ځان د افغانستان د تاج مستحق بولي. نو زه بېرېږم چې هغه هم د ښوربښیانو سره توطیه جوړه نه کړي. خو صرف له دې امله دي نه ورلیږم چې ستا په ذریعه د شوربازار د حضرت د ارادې او عزم څخه باید خبر اوسم.

ارشد: ما ته چې هر خدمت راوسپارل سي، په ډېره خوبنې او سرلوړي به ئې اجرا کړم.

امان الله خان: زه ستا څخه همداسې توقع لرم. ته د شوربازار پر حضرت ډېر ګران يې. نو د هغه ارادې او مفکورې معلوموه او ما ته ئې اطلاع راکوه.

ارشد: ډېر ښه.

علیاحضرتې ملکې د دې ټولو خبرو پر مهال ارشد ته په ډېر غور سره کتل داسي چې خپله څوکۍ ئې یو څه رانږدې هم کړه، کله چې دا خبري اتري پای ته ورسېدې نو هغې امان الله خان ته وویل: زما سر تاجه! آیا تا د شېرخان لور حسن جهانه لیدلې ده؟

امان الله خان په ډېر حیرت سره ملکې ته وکتل او ویې ویل: هو، لیدلې مې ده. خو اوس د هغې ذکر دلته په کوم ارتباط؟

مېرمن ثریا: زما په زړه کي یو خیال راګرځي. تاسې هغه نجلۍ څنګه بولئ؟

امان الله خان: ډېره ښکه نجلۍ ده.

مېرمن ثریا: او ښایسته هم؟

امان الله خان: هو، بېشکه چې ډېره ښایسته هم ده.

مېرمن ثریا: زما په خیال که د هغې کوزده د ارشد سره وسي نو ډېر به ښه وي.

ارشد په حیرانۍ سره ملکه ثریا ته کتل.

امان الله خان وویل: تا خو زما د زړه خبره وکړه. ما مخکي لا دا اراده کړې وه چې کومه ورځ دا ښورښ ختم سي نو په هماغه ورځ به شېرخان ته د ارشد له پاره مرکه کوم.

مېرمن ثریا: بس ما همدا ویل غوښتل.

لږ شېبه وروسته ښځینه خادمانو قهوه راوړه. غازي امان الله خان په خپل لاس یوه پیاله ارشد ته ونیوله. ارشد هم هغه ترې واخیسته او د قهوې په څښلو ئې پیل وکړ. ملکې او اعلیحضرت هم په څښلو شروع وکړل. ارشد د قهوې تر څښلو وروسته ولاړ سو، د تګ اجازه ئې وغوښته او په ډېر ادب سره ئې پاچا او ملکې ته سلامي وکړه او له شاهي ماڼۍ څخه راووت.

نور بیا ...

# د عبدالرحیم هاتف لیکونه

## (د حاجي عبدالظاهر څرک په نوم)

**دیارلسم لیک**

۲۰۰۲/۱۰/۱۷

ګران حاج عبدالظاهر جان، کورنۍ او دوستانو ته ئې السلام علیکم!

هیله ده ژوندی، روغ جوړ، په خیر او خوشحاله اوسې، موږ هم د غائبو دوستانو په شمول ښه یو. سپین ږیرتوب طبیعي دئ که څوک پایي مني به ئې.

پر ۲۰۰۲/۸/۲۸ ستا د ۲۰۰۲/۸/۱۳ تاریخ لیک د دوو دانو تقویمونو سره راورسېدی، کور دې ودان، مننه.

د جنتریو له پاره ممکن ما داسې درته لیکلي وه چي: جنتري مې په کار وه، غوښتل مې ستا څخه ئې راوغواړم، خو هغه ضرورت له بله ځایه رفع سو، ځکه نو اوس تا ته تکلیف نه درکوم. بیا هم تا ځان په تکلیف کړی دئ. ښاد او آباد اوسې.

دا دي کښېلي دي چي په نوي رژیم کي دي دا لومړی لیک دئ چي رالېږې ئې. زه به دعا کوم چي خدای تعالی دي د دغه رژیم لار په پای کي دیموکراسۍ ته وروباسي. ځکه چي دیموکراسي د خپلو ټولو نیمګړتیاوو سره یو داسي دولتي سیسټم دئ چي تر نورو معاصرو او کتابي حکومتي ډولونو ترجیح لري او په افغانستان کي د دغه خوب د تعبیر له پاره د امیر حبیب الله خان له عصره څخه رانیولې تر زماننا هذا پوري ډېرو خلګو ادعاوي کړي دي، چا کذائي او چا حقیقي. ډېري ککرۍ ئې د تحصیل په لاره کي خاوري سوي دي، د چا هغې په غفلت او بې خبرۍ کي او د چا هغې عالماً او عامداً. خو بیا هم دغه نایابه غمی تر اوسه دې خاوري ته نه دئ راغلی.

خان فیض الله خان چي دولتمندي او ثروت ئې د ځان له پاره مسلم او ازلي او ابدي حق بللی وو، کله چي به یو چا تصادفاً او د خان کاکا په قضاوت بلا استحقاقه پنځه خوشمرې پیدا کړې نو ده به استحفافاً د هغه ناحقه دولتمند سوي له پاره دا مصرع ویل:

هر کرا پنجروز نوبت اوست

خان کاکا دا افاده کول غوښتل چي دولت د بل چا سره وفا نه کوي که چیري وفا

کوي هغه نو د فیض الله خان او حبیب الله خان سره کوي او بس، دا نو یوه معترضه جمله وه.

له امیر حبیب الله خان څخه تر موجود رژیم پورې په دغه یوه قرن کې د دننه اوولس واره د امارت دور څرخېدلی دئ له ظاهرشاه پرته نور د هر یوه له پاره د خان کاکا مصراع صدق کوي. د ظاهرخان د دور تېرېدو له پاره هم خلګو ته ګروم ورلوېدلی وو او سترګې ئې سپینې ورته نیولي وې، ځلوېښت کاله هم په خوله یادېږي که چیرې اوس بیا راوستل سوی وای د پخوانیو ځلوېښتو سره ئې دغه د خلع ۲۹ هم پاچا دوستانو په دغه دلیل ورسره جمع کول چې د اساسي قانون په حکم پاچهي مادام العمر د ده حق وو. که خدای دي نه کوي دی نه وای د ده په نارینه اولاد کې به پاته وای او که هغه هم نه وای د ده په ښځینه وارثانو کې به ئې تر قیامته دوام کولای.

د داودخان جمهوریت د کودتا نتیجه وو، او کودتا ناجائز او بې قانونه عمل دئ. پاچاهي د خلګو خوښه وه او ده، ځکه نو د ظاهرشاه تبعید د ده د پاچهی پر دور ور زیاتېږي.

او په دغه توګه به د ده پاچهي د دنیا تر ټولو پاچهیو اوږده پاچهي وای له بده مرغه د ده د نه راتلو په وجه مو دا قهرماني هم په برخه نه سوه او زموږ آینده مؤرخین هم د دغه مفهوم له لیکلو څخه محروم پاته سول چې لیکل به ئې: سلطنت مرتبه دوم المتوکل علی الله اعلیحضرت محمدظاهرشاه، هغه ترکیب چې د امیر شېرعلي خان بارکزي او شاه محمود او شاه شجاع له پاره پخوا هم کار سوی وو.

تا لیکلي دي چې که څه هم کارونه ښه پر مخ نه ځي بیا هم خلګ د طالبانو تر وخت اوس خوشحاله دي، که څه هم واک بیرته پخوانیو ټوپکیانو ته سپارل سوی دئ.

تر کومه ځایه چې زما په زړه دي په افغانستان کې د تغیر او تبدیل په نتیجه کې خوشحالي او خواشیني پر حقایقو او واقعیتونو نه وي بنا، بلکې منشاء ئې د خلګو خپل شخصي توقعات او امان وي. ته ورته وګوره، د پادشاه صاحب لیري کېدل او د داودخان راتګ خلګ د څه له پاره خوښ کړل، که څه هم داودخان څه پټ سړی نه وو له پخوا څخه هم خلګو پېژاند، دغه سلسله په هر تګ راتګ کې بیا هم تکرار سوه او هر واري خلګو نوی راغلی رژیم د خپلو ارمانونو تحقق بللی دئ، پرته له دې چې د هغه په واقعیت او منشاء ځان خبر کړي. یا د هغه ماهیت وپېژني. د هر رژیم د راتلو سره خلګ خپل توقعات غټ کړي له هغه پرته چې د راغلي دولت امکانات په نظر کې ونیسي. له یوې خوا توقعات تحقق نه سي میندلای، له بله لوري خلګ له آسمانه نه وي راغلي د دغې وړې او بې سواده جامعې څخه راوتلي خلګ وي په یوه تصادف سر ته راسي ورو ورو د هغو خپل ذاتي عیبونه هم راسرېږه سي. دا وخت چې خلګ سترګې روښې کړي د حاضر رژیم نیمګړتیاوېویني او د تېر رژیم یو و نیم هنر چې هرومرو به ئې لرلی وي و سترګو ته دربېږي. نتیجه ئې وژاړه کفن کښ ته دعا او په تېر پسې ارمان وي. دا کار د ظاهرخان څخه راواخله تر ملا محمدعمره پورې د هر یوه په حق کې ممکن تکرار سوی وي او که چیرې له

دغه حاله څخه څوک مستثنی سوی وي هغه به نادر وي. یا به د هغو د امتیاز ټکي لږ وه. لکه تره کی، امین، کارمل او ټول توپکیان، خو هغو هم څه مثبت ټکي درلودل که څه هم لږ وه.

ولې دغسي ده؟ آیا نور څوک هم دغسي وي؟

دا ځکه چي پر موږ تل حکومتونه له پاسه راتپل کېږي. نوم چي هر څه وي وي به، خو واقعیت ئې زور زیاتی دئ. هر رژیم او هر مسلط سیستم د هغه زور په برکت ځان ته یو ډول تقدس او تحریم هم لاس ته وروړي. څوک د دین او مذهب په نامه خپل مخالف باغي اعلانوي او څوک ئې د ازم او مسلک په نامه غندي. تر دواړو بدتر هغه دئ چي د نسبي اصالت او عالي ارث په نسبت د خپل حکم انحصار اعلان کړي نور خو لا پر پرده کله د خپلو تر برو سرونه لا هم غوڅوي.

دا ټول د مسلماني په بعدي اصطلاحاتو کي تقلبي حکومتونه بلل کېدل چي له بده مرغه پر موږ تل مسلط پاته سوي دي. کله له دننه څخه کله له بهر څخه کله د دغه نامه مستحق کله غیر مستحق.

او دا ډول حکومتونه پر خلګو غمېږي او درنېږي چي راتګ ئې د چا په خوښه او رضا نه وي. تل د دغه ډول حکومتونو د لیري کېدلو انتظار کوي. خو لیري کېدل دوې لاري لري: یوه ئې هغه لار ده چي د خلګو سره د نابالغ اولس په توګه سلوک کېږي. قیم او ولي ورته غوره کېږي او پخواني باطل دور تکرارېږي، د یوې زورواکۍ پر ځای بله راځي او په هغه شکل چي پخواني زورواکي راغلي وه وروستني هم په هغه شکل راځي، که څه هم د فاسد چاره په افسد سوې وي، که څه هم د کله پز پر ځای سپی کښېنستلی وي، خلګ خوشحالي ورته کوي، نوی راغلی فکر کوي او حتی ادعا کوي چي خوښي او خوشحالي د ده د راتلو په مناسبت ده. خو اصلاً اتېونه د کله پز پر لیري کېدو وي چي خلګو د هغه له ښوروا څخه کله خوند نه وي اخیستی، نه د سپي له راتلو څخه ځکه د هغه په راتلو کي چا ونډه نه وي اخیستې. د هغه راتګ د چا مطلوب نه وي حتی د هغه ماهیت هم چا نه وي تحلیل کړی.

اما غوښتني طبیعي دي. ضرورت دئ هر وخت ئې خلګ لري خو کله اشتباه په دغه کي وي چي خلګ توقعات تر لازمي اندازې لوړ بیایي. غافل له دې څخه چي نوی حاکم هم محدودیتونه لري له بله لوري هر حاکم په لومړۍ مرحله کي و هغه چا ته توجه کوي چي دی ئې و دغه مقام ته رسولی وي. که د خلګو د خوښي او انتخاب له لاري قدرت ته رسېدلی وو نو لومړی مکلفیت ئې د هغو راضي ساتل وي. او که چیري د بل چا په زور او طاقت ځای پر ځای سوی وو. طبعاً به هغه خوشحاله ساتي او په بل چا کي به چرت نه وهي، خصوصاً چي د هغو موثریت هم ثابت نه وي.

کله چي د حکومت او قدرت مدعیان د ختو د مزدورانو په شان په چارسو کي داوطلب ودرېږي او د کارفرما سره پر مشخصو ټکو تعهد وکړي هغه به داسي وخت وي چي عام اولس بلوغ ته رسېدلی وي او په خپله د خپلې فیصلې او انتخاب مسئول وي. که چیري په انتخاب کي تېروتلی وي یا په قرارداد کي خطاوتلی وي

په بعدي انتخاباتو کي به هغه اشتباه نه تکراروي او په اصلاح کي به ئې زيار باسي. دا مرحله مفته نه ميسرېږي. د اولس رشد او بلوغ غواړي، يوازي ئې د کاغذه پر مخ ليکل يا هوايي وعدې ورکول هم دغه تشه نه سي ډکولای. د مثال له پاره د پاکستان او ترکيې يو په بل پسې دموکراسي او نظامي کودتا کفايت کوي که نه وي د الجزاير مثال هم پر زيات کړه. خبره ستا تر توقعاتو پوري راپورته سول. توقعات له منتخب حکومت څخه کېږي هغه هم د حکومت د قبلي تعهداتو په حدودو کي او د هغو وعدو سره په تناسب. خو هغه وخت به هم يوازي منتخب حکومت مسئول نه وي، بلکي اولس به هم و هغه قانون ته په غاړه ايښوولو او انقياد مکلف وي کوم چي د خلگو منتخبو نمايندګانو په پارلمان کي د رايو په اکثريت تصويب کړی وي.

په دغه ډول وطن کي چي د انسان ژوند، حيثيت، پت او مال خوندي وي او حقوق او عقايد ئې محترم ګڼل سوي وي او تامين وي خلګ د هغه سره واقعي مينه کوي، د وطن حق ثابت ګڼي او د ګټو له پاره ئې لاري چاري لټوي او په وطن کي يوازي خپل منافع نه لټوي بلکي د هغو سره يو ځای او تر هغو مقدم د هيواد ګټي او حيثيت په نظر کي نيسي.

نور تو: تا ليکلي دي چي ستا څخه مي د موجودي وضع په باب معلومات غوښتي وه. زما په فکر د صحنې مشاهده او د زمانې سير هر څه بربنډوي او تر هر معلم ډېر فصاحت لري. د رحمان بابا د شعر په اتکا بايد وويل سي چي:

فال به څه ګورې رحمانه
خپل افعال د سرې فال سي

د ساکن له پاره لنډ واټن لايتناهي مصافه وي. خو د متحرک له پاره د لاري وهل د هغه په سرعت او قوت پوري تړلې وي. د دنيا ښه او بد يو هم مطلق نه وي. په ښو کي هرومرو د بدی نښي نښانې هم موجودي وي، و کذا بالعکس مثلاً:

دا ښه سو چي پناهندګان بيرته خپل هيواد ته راستانه سول، ځکه پر پردی مځکه خو طبيعتاً سړی سپک وي او که پر خپله مېنه چيري سپک هم سي نو هر چيري او د هر چا له خوا به نه وي سپک سوی، يو چيري به وزن هم لري.

د مکتبونو و خوا ته توجه کول غنيمت دئ، که څه هم سړی نه سي کولای هغه معياري مکتبونه وبولي او څوک دا حق هم نه لري چي د معياري مکتبو توقع ولري.

د مسلسلو وچو کلونو او مرکزي دولت سره نړی واله عدم همکاري دغه درجې ته رسېدلې وه چي مالونه خو چټ سول اوس به نو سرونه هم داسي رغړېدای لکه د جنګ په ميدان کي. د غربي عسکرو خصوصاً امريکايي لښکرو حضور دا هيله پيدا کړې ده چي ممکن اوس نو انسانان اړ نه سي چي د لوږي له ډاره څخه خپل اولاد خرڅ کړي. يا هم له ناچارۍ څخه د بوده ګانو په شان نسونه په وښو ډک کړي. کشکي خو واښه هم پيدا سي. مځکي که ګراني سي مځکه والا به په ګټه کي وي خو رانيول والا هم دنيادار دئ پر عام اولس به

ډېره اغېزه نه ولري که مزدوري ډېره سوه او ګرانه سوه لا به ئې تاثير نسبتاً عام وي.

په تېرو پنځه ويشتو کالو کي موږ وليدل هغه چي ممکن نه وه ممکن سول. لکه د روسانو اشغال، او بيا د هغو وتل او ځيني خبري چي مسلمي ګڼل کېدې هغه ناممکني سوې. لکه د هر اولس واک پر خپله مځکه او خپل سرنوشت په مطلق ډول منل. دا چي تا د حکومت د ځينو مامورينو نومونه ياد کړي دي ما ته د افلاطون د فلسفې د مثالونو او اشباحو تمثيل زړه ته راوګرځېدی، که چيري ستا تر نظر نه وي تېر سوی هغه داسي دئ، چي:

ته يوه تياره خونه فرض کړه چي په هغه کي يو سړی يا ډېر خلګ داسي ناست وي چي مخونه ئې و تياره دېوال ته متوجه او شا ئې په دايمي توګه د رڼا لور ته وي چي هغه ته يوه دروازه فرض کړه.

تر دروازې دباندي يو روښانه ګروپ لګېږي، د هغه ګروپ او دروازې تر منځ يو سړی په مختلفو جامو او مختلفو بڼو تېرېږي. مثلاً کله درېشي اغوندي کله مصنوعي ږيره پر ږدي، ګاهي لنګوټه تړي او ځيني وخت ئې دوپټه پر اوړو وي. په تياره خونه کي ناست خپل مخ ته پر مقابل دېوال فکر کوي چي ډېر خلګ او مختلف اشخاص تګ راتګ کوي په داسي حال کي چي دا ټولي سايې دي اصلاً متحرک هغه يو سړی دئ. فافهم.

اين همه آوازها از شه بود
گر چي از حلقوم عبدالله بود

د دغه ډول مخلوقاتو په باب دا ويل چي دوی دا پلان لري يا ها. اضافه خبر ښکاري.

ځکه چي دوی يقيناً په دې نه پوهېږي چي قدرت والا څه ته راغلی؟ او تر کله به پاته وي؟ نو تر دغه لاندي خبري به څه وربښکاره سي؟ پلان ډېر مقدمات غواړي، د هوس خبري نه دي او هغه مقدمات تر اوسه لا نه دي راغونډ سوي. د حکومت له پاره تر پلان دمخه مشروعيت په کار دئ او د هغه له پاره په دنيا کي د بالغانو، آزاد، سري او عمومي انتخابات په کار وي، چي دا کار په افغانستان کي هيڅکله نه دئ سوی او د افغانستان په شان په يوه بې مفاهمې ملک کي چي هر څوک هر څه د ځان له پاره غواړي آسانه خبره هم نه ده.

تا دا پوښتنه هم کړې وه چي امريکايانو ولي ظاهرخان نه راووست چي د هغه پر ځای ئې بيرته پخواني توپکيان راوستل؟

که چيري ما ته دا خبره روښانه وای چي امريکايان ولي راغلل؟ نو به دا پوښتنه هم حل وای چي ولي ئې دا وکړل او هغه نه؟ که امريکايان زموږ له پاره او زموږ په فرمايش راغلي وای نو به موږ اوس د هغو د ترجيح له پاره توجيه پيدا کولای.

دا چي دوی د خپلو مقاصدو او خپلو منافعو له پاره راغلي دي نو جواب ئې هم دا دئ چي: بکار مملکت خويش خسروان دانند.

موږ چي به کله ښاه پاکاوه، مرحوم ملا منګی او د هغه ورور سړوبی به مو پيدا کاوه. د کورونو د نقشې او قيمت له پاره به مو مرحوم استاد نعيم جان معمار باشي ته مراجعه کول، شربت به مو له رازمحمد څخه رانيول او د دعوتونو د آشپزۍ له پاره به په حاج سيدمحمد آشپز پسي ګرځېدو. ته وا

امریکایان نو په خپل کار نه پوهېږي؟ غلطي به په دغه کي وي چي سړی دا فکر وکړي چي دغه ملیاردونه ډالرونه زموږ د ودانۍ له پاره خرڅېږي؟ یلا ملا عمر او اسامه بن لادن اوس داسي ګران سوي دي چي په دغه خرڅونو ارزي. دا چي هر څه د دوی کار وبولو نو دا دوې وړې خبري رامنځته کېږي:

۱/ د امریکایي انسانویني ډېري سرې دي او قیمت ئې لوړ دئ. بازخواست ئې هم په انتخاباتو کي کېږي هم په محاکمو کي د هر چا په راوستلو کي چي د امریکایي نفوسو مرګ ژوبله کمېږي او هر څوک چي د امریکایي او غربي قواوو له پاره لوی سپر جوړولای سي هغه ترجیح لري. دا نو څوک دئ؟

توپچیان که ظاهرخان؟؟

۲/ په عین حال کي امریکایان په دې پوهېږي چي د دوی دغه کار کاملاً پر خپل سر هم باید نه واوسي، بلکي نور د منطقې دلچسپي والا قوتونه هم سر ورسره وښوروي یا په زر [پاکستان] یا په زور [عربستان + پاکستان + اسلامي ټولنه] یا د منافعو په اشتراک [ترکیه، روس، هند، ایران ...].

د شمال تش په نامه اتحاد تر شا روس، هند، ایران، تاجکستان، ترکیه او ازبکستان ولاړ وه، او د هغو په حمایه کي ئې مصرفونه کړي وه، که ئې پاچا د هغو پر ځای راوستلای نو د هغه د حمایې له پاره څوک ولاړ وه؟ او هغه د لومړي شرط د تکمیل پر ځای به د امریکایانو له پاره د جنګ لمن نه وای پراخه سوې؟ اوس ظاهرخان نه راغی نه راغی. د پښتنو غاړه خو په کرزي او شېرزي هم وزي او که چیري امریکایان زموږ غم اخستي وای هغه وخت به دا د ورانۍ صحنه هم ډېره نه اوږدېدلای او ممکن زموږ و سر نا ته ئې هم غوږ نیولی وای.

ستاسي مخلص - هاتف

ټولوونکی: رزمي

## ګل خبري

- زحمتکښي د انسان د کرکټر ښکارندوی ده، یو شمېر خلک خپل لستوني را نغړي، ځیني کسان خپلي پزي په هوا نیسي او ځیني خلک اصلاً هیڅ حرکت نه کوي.
- ځیني خلک د ژوند له پاره په تلاښ کي دونه ورک دي چي ژوند کول ئې پر مخ هېر کړي دي.
- د اخلاقو، عدالت او مساوات اصول د جنتری په اوښتلو سره نه بدلېږي.
- ته پخپله باید دهغه بدلون یوه برخه واوسې چي ته ئې غواړې.
- د پرمختګ له پاره ډېري لاري سته خو د پر ځای درېدلو لاره یوه ده.
- ربښتیني پوهه هغه ده چي انسان د خپلي ناپوهۍ په درجه وپوهېږي.
- د آمر او لاربښود ترمنځ فرق: آمر وایي ځه ولاړ سه! او لاربښود وایي راځئ چي ځو!

کله چي سمندر ارام وي هر څوک غواړي چي د بېړۍ جلو په لاس کي واخلي.

هارون خپل شعشعي/ لندن

# وختونه او یادؤنه




(لسمه برخه)

## چاچا خېټۆ

د ۱۹۹۲ع = ۱۳۷۱ش کال د دوبي شپې او روځې وې. په افغانستان کښې د ډاکټر نجیب د حکومت له نسکورېدو څخه ایله بېله څو میاشې تېرې سوې وې. په کابل او ځینو ولایتو کښې د بېلابېلو تنظیمو او ملېشو تر منځ د اقتدار خونړۍ جګړې رواني وې. هره روځ د نړۍ د تلوېزونو، رادیوګانو او روځپاڼو له لارې د کابل ښار د وحشتناکې ورانۍ او د کابل ښاریانو د بېرحمانه وژنو خبرونه خپرېدل.

د جنګ او وحشت په دې تورو او ویرجنو شپو او روځو کښې له کابل، کندهار او نورو ولایتو څخه د مهاجرو افغانانو جوپې جوپې و پاکستان ته راتلې. ځینو په اسلام آباد، ځینو په پېښوَر او کوَټه، ځینو نورو، په تېره بیا کنداریانو په کراچۍ کښې د سرپناه مۆندني هڅې کولې. د جنګځپلو او دردمنو مهاجرو په دې اوږده او ناپایه بهیر کښې زما د ورور او ځینو نورو نیژدې خپلوانو کورنۍ هم و کراچۍ ته راغلې وې. د هر مهاجر افغان په کور کښې د دربدرو خپلوانو او عزیزانو دوې-درې کورنۍ تخته وې.

د افغانانو د تاریخ په دغه دردناک او ویرجن پېر کښې یوه روځ په فابریکه کښې د برېښنا د پرچوۍ په وجه نسبتاً وختي کور ته راغلئ وم. د څه سَوُدا په نیامت له کوره را کښته سولم، چې نابېره مې د کمپلیکس په منځ کښې، د ماجت او پارکګوټي تر څنګ، د کوچنیو او زلموټو هلکانو هغې پینځه - شپږ کسیزې ډلې نظر واړاوه، چې د ټوکو او ساتېرې په بڼه یې، په لوړ ږغ نارې وهلې: «مرده باد پاکستان! مرده باد پاکستان!»

د هلکانو تر چالاکې او ګړندۍ ډلې څو ګامه وروسته زمۆږ د پلازا «چاچا خېټۆ» په داسې حال کښې راخغستل، چې په سختۍ سره یې سا شړله: او له ډېره خښمه یې د «بهن چودو ودرېږئ، ستاسې سره کار لرم» لویې چغې وهلې. هلکان د سترګو په رپ کښې د دې او هغه

خپلواک دولت د جوړېدو حق نه ؤ ورکړل سوئ. هغی (هغوی) ته فقط له هِندوستان یا پاکستان سره د یؤ ځای کېدو حق ورکړل سوئ ؤ. دا ټش په نامه ریفرانډم له پښتؤن اولس سره ښکاره دوکه وه.

– ښه نه نو خان صاب! دا هلکان اوس د هغؤ تاریخي مسألو پر اساس د «پاکستان مرده باد!» ناري وهي؟

– یایا. دغه کؤچني هلکان په هغؤ تاریخي مسألو نه دي خبر؛ او نه یې په دې عمر کښې په دې خبرو سد نه رسیږي.

– خان صاب! ما ته هم له ورایه ښکاري، چي پلرو او مندو یې دا زهرجني خبري په مغزو کښې ور پېچکاري کړي دي.

– انکل جي! پلرو او مندو یې نه، بلکي د وخت دردو او مصیبتو یې دا خیالؤنه او فکرؤنه په مغزو کښې را شنه کړي دي.

– خان صاب! د وخت له دردو او مصیبتو څخه مؤ مطلب څه دئ؟

– انکل جي! مهاجر افغانان ټول د پردېسی په دې بدؤ او ترخو روځؤ کښې د پاکستاني ورؤنو د پېرزویني او مېلمه پالني احسانمند دي، خؤ نن د ډیورنډ د تاریخي مسألې پر ناخوالؤ سربېره د افغانانؤ په زړؤنؤ کښې له پاکستاني حکومت څخه نوي ګیلې او شکوې هم پیدا سوي دي، چي د هري روځي په تېرېدو سره په کرکه او دؤښمنی بدلیږي.

– خان صاب! د کمي (کؤمي) ګیلې او شکوې خبري کیې، چي په کرکه او دؤښمنی بدلیږي؟

انکل جي په داسي حال کښې چي د هلکانؤ د«پاکستان مرده باد!» نارو او زما انتقادي خبرو یې پر مغزو اور بل کړئ ؤ، په نسبتاً دردمنه لهجه وویل.

– انکل جي! تاسي پوهېږئ، چي په دې وروستییؤ وختو کښې هره روځ زرؤنه مهاجر افغانان و پاکستان ته راځي. دا هغه مهاجرین دي، چي د کابل او نورو ولایتو په روانؤ تنظیمي جنګو کښې عزیزان، کورؤنه، شتمنی، لنډه دا چي د ژوندانه ټول هست و نېست له لاسه ورکړي دي.

– خان صاب دا خبره خؤ ما ته هم مالومه ده. هر روځ په خپلو سترګو ګورم، چي د نوؤ افغان مهاجرو کورنی د کور مؤندلؤ په هیله و پلازا ته راځي. مګر دا خبره له «پاکستان مرده باد!» او نورو ګیلو شکوو سره څه تعلق لري؟

– انکل جي! تعلق خؤ یې لمرغؤندي روښانه دئ.

– هغه څنګه؟

– هغه په دې ډوَل چي ټول مهاجر افغانان، په تېره بیا د تنظیمي جګړو له وینؤ او لمبو څخه را تښتېدلي افغانان د خپل تاریخي هیواد د بربادی او د خپلؤ بېوزلؤ هیوادوالو د تراژیدی اصلي مسبب پاکستاني مقامات، په تېره بیا پاکستاني استخبارات او پاکستانی پوځ ګڼي. هر څوک په دې پوهیږي، چي په کابل او نورو ولایتو کښې واکمني جنګي ډلي ټپلي د پاکستاني پوځ او پاکستاني آی. ایس. آی. له خوا روزل سوي او واک ته رسېدلي دي. د دغؤ دلایلؤ له مخي نو ټول دردېدلي او کړېدلي افغانان له پاکستاني واکمنانؤ څخه کرکه کیي. که له پاکستان او ایران څخه صادر سؤؤ تنظیمو په کابل او ولایتو کښې یو ریښتینی ملي او اسلامي دولت جوړ کړئ وای، ولي به نن زمؤږ ګران او تاریخي هیواد په کنډواله اوښتلای؛ ولي به په

زرو بې ګڼنا افغانان د تنظيمي او مليشايي ډلوټپلو د ليونيو دوښمنييو په اور کښي لوٌلپه کېدلای؛ ولي به د سرلوړو او پتمنو افغانانوٌ شرف او ناموٌس تر پښو لاندي کېدلای؛ او لکوٌنه به د سرخوٌندي کولوٌ او ناموٌس ساتني په خاطر د خپلي پلرنۍ خاوري و پرېښووَلو ته اړ وتل. انکل جي! تاسي شاوخوا پوٌښتنه وکئ، چي دې ظالموٌ ډلوٌ ټپلوٌ په کابل او نورو ښارو کښي څه ناورينوٌنه او مصيبتوٌنه و نه زېږوَل. انکل جي! هغه مهال چي زه و پاکستان ته راغلم، افغان مهاجرو د جهادي تنظيمو او پاکستاني استخباراتوٌ له ببري پر خپلوٌ ټولو دردو او ناخوالوٌ سترګي پټولې؛ ځکه د پاکستان مېشتو افغان تنظيمو او پاکستاني آی. ايس. آی. د سياسي کړنلارو کړنه د مرګ په بيه ورته تمامېدله؛ خوٌ اوس سياسي حالات يو سل و اتيا درجې اَوښتي دي. د تنظيمي جګړو په اور کښي سوځېدلي افغانان نور د هيڅ شي او هيڅا پروا نه لري. په حقيقت کښي داسي څه نه دي ور پاته، چي د ساتني دپاره يې خولي پټي ونيسي. هر څه يې برباد سوي دي؛ او د خپلي بربادۍ په ټول داستان يې ښه سر خلاص دئ.

– خان صاب! زه ستاسي سره په دې خبرو کښي پوٌره اتفاق لرم. ما ته مالومه ده، چي دغوٌ افغان تنظيمو په پاکستان د خپلي استوګني پر مهال د جنت خبري کولې. هر وخت او هر چيري بې د اسلامي او منصفانه نظام د جوړولو ناري وهلې. تاسي په خپله هم له څو کالوٌ راهيسي په پاکستان کښي اوسېږئ؛ او د دې خبرو شاهد ياست. موٌږ پاکستانيانو خوٌ تصوٌر کاوه، چي يو وخت به د افغانانوٌ د اسلامي نظام اثر و رسوٌخ په پاکستان کښي هم خپور سي؛ او په دې توګه به موٌږ هم له انګرېزي قوانينو، رشوت او خيانت څخه خلاص سوٌ، خوٌ دی (دوی) هر څه برباد کړل. د افغانانوٌ له اسلامي تنظيمو څخه هيڅکله داسي توقع نه کېدله. موٌږ پاکستانيانوٌ پوٌره باور لاره، چي ډېر ژر به ټول افغان مهاجرين بيرته وخپل وطن او خپلو کورو ته ستانه سي، خوٌ ريښتيا هم اوس ګورو، چي پر پخوانييو مهاجرو سربېره، لکوٌنه نور افغانان هم د سرخوٌندي کولوٌ په هيله و پاکستان ته راغلل. خان صاب! تاسي کاملاً سهي واياست. زه د يوه داسي پاکستاني په توګه چي همېشه مي د دغوٌ جهادي تنظيمو ننګه او ملاتړ کاوه، اوس د دی په کرتوٌت ډېر شرمېږم. اسلامي حکومت خوٌ داسي نه يي! په اسلامي حکومت کښي خو د هر اوسېدوٌنکي ژوند، عزت او مال په بشپړه توګه خوٌندي يي. د افغانستان اوسني حالت خوٌ له انسانيت او اسلاميت سره هيڅ راز مطابقت نه لري. خان صاب! په دې خاطر نو زه هم نور له دغوٌ افغان مهاجرو کوٌچنيانوٌ څخه هيڅ ګيله او شکوَه نه لرم. مالوٌميږي چي د جنګ او مهاجرت مصيبتو يې په زړو کښي د درد او کرکي توٌخموٌنه کرلي دي.

– انکل جي! کور موٌ ودان، چي واقعيتو ته موٌ په سړه سينه غاړه کښېښوله؛ او زموٌږ د مهاجرو کوٌچنيانوٌ په زخمي زړو موٌ ځان خبر کئ.

– خان صاب! حق د خدای نوٌم دئ. له حقيقت څخه څوک اِنکار نه سي کولای.

له چاچاجي سره زما د زړه خواله پر دغه ځای پای ته ورسېده؛ او په دې ترتيب يې د مهاجرو هلکانوٌ «د پاکستان مرده باد!» له نارو څخه پخوانۍ کرکه او غوٌسه له زړه و وتله.

پای

مو کاوه. د دوی ودونه هم زموږ په رقم وه پر سټیج به سازنده ګانو غزلي ویلې دوی به ورته غورځېدل. فرق ئې دا وو، چې د دوی نر او ښځې به ګډ وه او ناوې او زوم به ئې هم یوار ایشلي ته راولاړول. کله کله به په دې سالون کې حکومت خاصي غونډي او دعوتونه هم سر ته رسول. د هوټل مخ چې یوه لویه میداني وه په غالیو به فرش سو نجوني او هلکان به په خپل ملي لباس کې و باجه خانې ته رقصېدل او د مېلمنو هر کلی به ئې کاوه، چې زموږ له پاره دا هم مفت سیل وو او ښه ننداره به مو کوله.

موږ د خپل سفر په دوران کې د دوی په اطاق تجارت کې د تجارانو د اتحادیې له غړو سره وکتل. د تجارت په وزارت کې مو د معین سره وکتل او د ګازو او نفتو د مسئول سره مو هم وکتل. په وزارت خارجه (د بهرنیو چارو وزارت) کې مو د معین سره وکتل. البته دا پروګرامونه ټوله د هغه چا له خوا جوړ سوي ول، چې د دوی حکومت زموږ لت پاره مسئول ټاکلی وو او یو شرابي روسی وو.

په عشق آباد کې د افغانستان د سفارت مسئولین په موږ خبر سوي ول ماښام هوټل ته راغلل او د سفیر له خوا ئې بلنه راکړه چې سبا غرمه زموږ مېلمانه یاست. سبا سفارت ته ورغلو سفیر چې د پنجشېر اوسېدونکی وو په خورا ورین تندي ئې زموږ هرکلی وکړ او ښه خوندوره ډوډۍ ئې کړې وه.

سفیر وویل چې داسي ډوډۍ د عشق آباد په هوټلو کې نسته او ما تاسي ته افغاني ډوډۍ در پخه کړې ده. ده وویل چې د نورو ولایاتو تجاران راځي مګر تاسي اوله ډله کندهاریان یاست چې دلته راځئ، موږ د پنجشېر خلک د کندهاریانو ډېر احترام لرو او د جنرال رازق د کندهار د امنیې قومندان ئې ډېر صفت کاوه. د عشق آباد هوا ګرمه وه. ټول د حکومت د امر سره سم نوي تعمیرونه په

سپینه ډبره جوړ ېدل چې ښار ته ئې ډېره ښکلا وربخښلې وه او کارونه اکثره ترکي انجینرانو مخ ته بېول. سپینه ډبره د ګرمۍ د جذبولو مخنیوی هم کوي.

دلته امنیت او سکون زیات لیدل کېږي. پولیس او مسلح عسکر مو نه ولیدل. د رئیس جمهور د دفتر سره مو یو بې سلاح پولیس ولیدی او خارجي سفارتو هم محافظ نه درلودی.

عشق آباد یو مجهز میوزیم هم درلودی، چې د هغه د لیدو له پاره هم مسئولینو وروستلو. دلته اکثره پروژې ترکانو نیولې وې، چې د ترکمنستان خلک هم ترکان بلل کېږي. دوی د خپل فقید مشر "نیازوف" ډېر احترام درلودی. نیازوف په خپل ژوند کې هم د ځان له پاره مجسمې جوړې کړې وې. په یوه لوی پارک کې ئې د ده پر قبر یوه لویه ګنبده او زیارت جوړ کړی وو. او په څنګ کې ئې یوه ډېره لویه جامع جوړه کړې وه د اوبو فوارې او قسم قسم ګلانو او چمنانو د دې جامع ښکلا زیاته کړې وه.

د ماښام لمونځ مو پکښې ادا کړ مګر مقتدیان ئې ډېر کم وه. د حکومت د امر سره سم آذان یوازې په دننه جامه کې کېږي. په عشق آباد کې پر سګرېټ څکولو بندیز وو او حتی په عام بازار او خلاصه فضاء کې هم چا سګرېټ نه سوای څکولای. موږ د هوټل اطاقونه داسي عیار وه چې که به چا سګرېټ پکښي لګولی وای، اتومات زنګ وهل کېدی او مسئولین په خبرېدل او خلک به ئې جریمه کول.

بریښنا او ګاز ټولو خلکو ته مفت وو او کم بیل ئې نه درلودی. د مخه تېل هم وړیا خلکو ته ورکول کېدل مګر اوس لږ قیمت ورته اېښول سوی وو. په ترکمنستان کې تر سفر وروسته د دوبۍ پر لار په طیاره کې کندهار ته راغلو.

موږ لوستونکي ته ضرورت لرو او لوستونکی هله کتاب لولي، چې په ارزښت او ګټه ئې پوه شي. خبرونه مو له ورځني ژوند سره مستقیمه اړیکه لري، ځکه ئې لولو، ملایانو راته ویلي، چې دیني کتابونو کې اخروي ګټه ده. تاریخونه په بحث کې د بل د اېلولو له پاره لولو؛ خو ادب ولې نه لولو؟ ځکه چې چا راته ویلي نه دي، چې کیسې، سفرنامې، شعرونه راته څه ګټه رسوي؟

ادب څه شی دئ، ادب له ناادبه څه توپیر لري؟ د ادب ګټه څه ده؟ په موږ کې کوم مثبت بدلون راوستی که نه؟ پر ژوند او طبیعت باندې د پوهېدو له پاره راسره مرسته کوي؟ که ئې و نه لولو، څه زیان کولای شو؟ دا دومره شعري ټولګې او د کیسه ییز کتابونه ولې چاپېږي؟ دا همغه اساسي پوښتني دي، چې د دومره ادبي او څېړنیزو ادبي آثارو تر چاپ مخکې ورسره لوستونکی مخ دئ. چې دا پوښتني حل شي، هله د ادب خپرېدا ته لار هواره شي.

دا او داسې په لسګونو نوري پوښتني د عام او ان خاص لوستونکي په سترګو کې غرېږي، چې هره یوه ئې د یوې خوندوري څېړنې او ځواب وړ ده او که دا ځوابونه و نه وایو، زموږ ادب په ټولنه کې ریښې نه شي ځغلولی.

همدا وخت دئ، چې موږ ادب د خپلو مشرانو د (ادب یواځې د ادبپوهانو) له پاره له نظریې راوباسو او عام ئې کړو؛ خو که عاموو ئې؛ نو د عامو لوستونکو په ذهن کې به اوښتونکو پاسنیو پوښتنو ته مقنع دلایل او ځوابونه وایو.

په دې کار به د خپلو مشرانو او همهالو کړو ادبي لیکنو پرېښې تشې ډکې کړو، لکه څوک چې دوه درې ورځې وروسته په خپلې اخېر کړې کوټې پسې ګلماله راواخلي او کړي چاودونه ئې سره کوشیر کړي.

ادب وخت پر وخت له داسې پوښتنو سره مخېږي، چې ځیرک لیکوال ئې د ادب مارکېټ، په ټولنه کې اغېز او نورو ته په کتو د حل کولو هڅه کوي.

ښایي کله راته تر سوچه لیکنو د ادب عملي اړخ ته متوجه لیکنې ډېره ګټه ورسوي. که د خپل ادب عملي ستونزو ته توجه و نه کړو، د سوچه ادبي لیکنو له لاسه به مو ادب په هوا کې معلق پاته شي او ځمکې ته به ئې د راکوزېدو امکان کم شي.

Kandahar

Bi-Monthly Magazine of Kandahar information & culture Department

لیکوال: ټاګور
مترجم: استاد عطایي

## زما ملګری

ته د ژوند او مرګ له حدودو څخه لیري ولاړ یې ستا دربار د نور و له پلوشو څخه ډک دئ.
ته په آسمانونو کي یې! د ژوند او مرګ له حدودو څخه د باندي، زه په دې نه پوهیږم چي زما دا زړه په کومه خبره دومره ډیر خوشحاله دئ، زما سترګي د آسمان لور ته اوړي، ما ستا خوا ته دواړه لاسونه در اوږده کړي دي او ولاړ یم.
زما ملګري!
ته د مرګ او ژوند د حدودو څخه د باندي ډیر لیري ولاړ یې او هغه څوک چي ستا په زړه کي یو او یوازي دئ هغه د دنیا په غمونو کي ډوب او مغروق مه پرېږده، کله کله د کور له چارو څخه ځان وزګار وه او د هغه چا نغمې مه بندوه چي یوازي په دغه زړه کي استوګنه لري او پرېږده چي د ده دغه د زړه نغمې څلور و خوا و ته وبهیږي، ته دی پرېږده چي په دې دنیا کي د دې دنیا نازونه وړغوي.